بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ (القرآن)

# كَنْزُ النَّوَادِر

## فِي

# اَلْقَوَانِيْن وَالْمَصَادِر

### پښتو شرح د ارشاد الصرف

# كَنزُ النّوَادِر فِي القَوَانِين وَالمَصَادِر

1
1

## پښتو شرح ارشاد الصرف

از افادات :


شيخ الصرف والنحو حضرت مولانا نصرالله خان

مهتمم مدرسه عربية بحر العلوم توحيد آباد


ترتيب وتزئين :


طالب العلم عبدالحق افغاني

متعلم دار العلوم حقانيه اكوړه ختك



ناشر :

مكتبة الحرم محله جنګي پشاور

# دکتاب ځانګړتیاوې :

دکتاب نوم :

کنزالنوادر في القوانین والمصادر

از افادات :

شیخ الصرف والنحو حضرت مولانا نصرالله خان

ترتیب وتزئین :

طالب العلم عبدالحق افغاني

متعلم دارالعلوم حقانیه اکوړه ختټك

دکمپوز ځاې :

سپین غر کمپوزنګ سنټر پشاور

ابوبشیر احمد افغاني

ناشر :

مکتبة الحرم محله جنګي پشاور

بسم اللّٰه الرحمن الرحيم

## فهرست :

بسم الله الرحمن الرحيم

# مقدمة

الحمد لله الموصوف بالتصريف المنوت بالتخفيف الذي انعامه صحيح على العباد
غير معتل بعلل طاعات العبادِ والصلوع والسلامْ على محمدن المضاعف
قدره على الانبياءِ الامجاد وعلى آله وأصحابه الذين
هم غير مهموز سجاياهم إلى يوم التنادِ اما بعد !

دهر علم دشروع نه مخكې د اوه(٧) څيزونو پيژندل ضروري دي :
١- مقام دعلم . ٢- تعريف دعلم . ٣- موضوع دعلم . ۴- غرض دعلم .
۵- واضع دعلم . ٦- وجهٔ تسميه . ٧- مصنّف دكتاب .

**سوال :** ددې اوه(٧) څيزونو پيژندل ولې ضروري دي ؟

**جواب :** دمقام معنى ده مرتبه : دمقام پيژندل ځكه ضروري دي چې په وئيلو كې زيات شوق پيدا شي .

دتعريف پيژندل ځكه ضروي دي چه طلب دمجهول مطلق لازم نشي .

دموضوع پيژندل ځكه ضروري دي چه مقصود او غيرمقصود كې جُدا والې راشي .

دغرض پيژندل ځكه ضروري دي چې كوشش دمبتدي عبث نشي .

دواضع پيژندل ځكه ضروري دي چې دده شان او شوكت په زړه كې كيني او په وئيلو كې ښه شوق پيداشي .

وجه تسميه دكتاب ځكه پيژندل ضروري ده چې داخبره معلومه شي چې دې ذكرشوي كتاب ته دانوم ولې مقررشوې دې .

دمصنّف نوم ځكه پيژندل ضروري دي چې دده دعلمي مرتبې نه دكتاب اهميت معلوم شي چې ددې كتاب مصنف چې دومره مرتبې والادې نو دده دليكلي شوي كتاب مرتبه به هم اعلى وي .

دغه شان دعلم الصرف دشروع نه مخكې هم دا اوه(٧) څيزونه پيژندل ضروري دي .

**۱- مقام علم الصرف** (۱) **: الصرف ام العلوم** : علم الصرف دټولو علوموليپاره په شان دمور ده يعنې په اعتبار دضرورت او اهميت نه په اعتبار دشان او فضيلت سره .

**۲- تعريف علم الصرف** (۲) **: الصرف علم بأصول يعرف بها احوال ابنية الكلمة الثلاث من حيث الاصل والبناءِ والتعليل .**

**ترجمه :** علم صرف نوم دې دداسې قرائنو چې ددې په ذريعه ددرې كلماتو حالات معلومولې شي په اعتبار داصل ، بناء او تعليل سره .

**۳- موضوع علم الصرف** (۳) **: الكلمة من حيث الصيغة والبناءِ** : كلمات دلغت دعربو په اعتبار دصيغې او بناء سره .

**۴- غرض علم الصرف**(۴) **: صيانة الذهن عن الخطاء في الصيغة** : ذهن ساتل دصيغې دغلطئ نه .

**۵- واضع علم الصرف : معاذ بن مسلم الهروي** رَحِمَهُ اللّٰهُ (په قول داكثرو) (قانونچه شاه جمالي) .

**٦- وجهٔ تسميه كتاب :** ارشاد الصرف : معنى ده دعلم الصرف لاره ښودنكې ، ارشاد مصدر دې په معنى داسم فاعل مرشد سره . الصرف مضاف لفظ دعلم محذوف دې . تقدير . عبارت به داسې شي : مرشد علم الصرف يعنې دا كتاب علم الصرف طرفته رهنمائي كونكې دې .

**۷- مصنف كتاب :** حضرت مولانا خدا بخش رحمة الله واسعة دې . ددې نه ماسوا خبره تحقيقي نه ده .

---

(۱) دصرف لغوي معنى ده اړول او اصطلاحي معنى ده : تحويل الاصل الواحد (المصدر) الى امثلة مختلفة لحصول المعاني المقصودة .

(۲) دتعريف لغوي معنى ده : مايعرف به الشئ اصطلاحي معنى ده : مايميز به الشئ عن جميع ماعداه .

(۳) دموضوع لغوي معنى ده : كېښودل شوې اصطلاح معنى ده : مايبحث فى العلم عن عوارضه الذاتيه .

(۴) دغرض لغوي معنى ده : مطلوب . اصطلاحي معنى ده : مايكون باعثا للفعل .

## يوځو اصطلاحاتِ مستعمله :

**لغت:** دلغت لغوي معنى ده ژبه او اصطلاحي معنى يې ده : **ما يعبر به كل قوم عن اغراضهم** .

**اصطلاح:** داصطلاح لغوي معنى ده صلح كول او اصطلاحي معنى يې ده : **اتفاق قومٍ مخصوص على امر مخصوص** .

**صيغة:** دصيغې لغوي معنى ده سره زر ويلي كول او قالب كې اچول او اصطلاحي معنى يې ده : هغه شكل چې كوم دحروف ، حركات ، سكنات دترتيب نه پس حاصل وي لكه ض ، ر ، ب . پس ترتيب دحروف ، حركات ، سكنات نه ضَرَبَ شو .

**منصرف:** هغه شي دې چې درې واړه حركات سره دتنوين نه پرې راځي .

**غيرمنصرف:** هغه دې چې كسره اوتنوين پرې نه راځي يعنې دجرپه ځاي كې به هميشه مفتوح وي .

**معرب :** هغه دې چې آخريې په اختلاف دعواملو سره بدليږي .

**تنوين :** نُوْنٌ ساكِنَةٌ تَتْبَعُ حَرَكَةَ آخِرِ الكَلِمَةِ لالِتَاكِيْدِ الفِعْلِ . يعنې هغه نون ساكنه چې دكلمې په آخر كې دحركت نه پس وي دفعل دتاكيد لپاره نه وي دا نون صرف په وئيلو كې راځي په ليكلو كې نه راځي .

**حروف جاره :** حروف جاره اولس (۱۷) دي :

باء . وتاء . وكاف . ولام      واو . منذ . ومذ . خلا .

رب . حاشا . من . عدا .      في . عن . على . حتى . إلى

**حروف نداء :** حروف نداء پنځه (۵) دي :

يا . ايا . هيا . اى . همزه مفتوحه يعني : أ .

**حروف جازمه :** حروف جازمه پنځه (۵) دي :

ان . ولم . لما . ولام امر . ولاي نهي نيز      پنج حرف جازم فعلند هر يك بى دغا

**حروف ناصبه :** حروف ناصبه څلور (۴) دي :

أن ولن پس كى إذن اين چار حرف معتبر      نصب مستقبل كند اين جمله دائم اقتضاء

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

**بِدَان اَسۡعَدَكَ اللّٰهُ تَعَالٰی فِي الدَّارَيۡنِ : كه كلمات لغت عرب برسه قسم است : اسم است وفعل است وحرف است : اسم چون رَجُلٌ وَفَرَسٌ . وفعل چون ضَرَبَ وَدَحۡرَجَ . وحرف چون مِن والی .**

**تشریح :**

**سوال :** منصف رَحِمَهُ اللّٰهُ دحمدنه دکتاب شروع ولې ونه کړه ؟

**جواب :** په بسم الله الرحمن الرحيم کې حمد هم شته .

**سوال :** منصف په شروع کې بدان ولې راوړو ؟

**جواب :** دطالب علم دهوښیارولو او خبردارکولو دپار .

**سوال :** منصف رَحِمَهُ اللّٰهُ بدان اوونیل ببین اوبشنو وغيره يې ولې اونه وئيل ؟

**جواب :** دبدان متعلق دزړه سره دې، ديوشي پيژندل په زړه سره ډيره اولی وي .

**سوال :** هرکله چه کتاب فارسي ژبه کې دې نوجمله دعائيه اسعدك الخ يې په عربي ژبه کې ولې راوړ ؟

**جواب :** په عربي ژبه کې الله تعالى زر دعا قبلوي .[۱]

**سوال :** لغت سره يې دعرب قيدولې ولګولوحالانکه دټولولغاتو کلمات په درې قسمه دي ؟

**جواب :** دعرب تخصيص دمقصود په لحاظ سره دې ورنه يو ژبه هم ددې کلماتو نه خالي نه وي

**سوال :** کلمات يې په درې اقساموکې ولې بند کړل ؟

**جواب :** کلمات يې په درې اقسامو کې څکه بند کړل چه کلمه به ياپخپله معنی پخپله دلالت کوي يا به يې نه کوي که يې نه کوي، نودا حرف دې، اوکه يې کوي يعنې په خپله معنی باندې په دلالت کولو کې دبلې کلمې محتاج نه وي نو بيا به ددوه حالونو خالي نه وي يعنې دغه معنی به درې زمانو کې له يوې زمانې سره پيوسته وي، يابه نه وي، که نه وي نودا اسم شو اوکه وي نو دا فعل شو

---

[۱] په حديث شريف کې په عربي ژبه کې د دعا غوښتلو ترغيب راغلې دې . اَلدُّعَاءُ بِلِسَانِ الْعَرَبِيَّةِ أَسۡرَعُ الۡإِجَابَةِ .

**سوال :** منصف دلته اسم ولې مقدم کړو حالاتکه نورو فعل مقدم کړي دي ؟

**جواب :** دادمنصف مسامحت (چشم پوشي) دي .

**واسم برسه قسم است. ثلاثي. رباعي. خماسي. ثلاثي سه حرفي راگويند چون: زيدٌ. رباعي چهار حرفي راگويند چون جعفرٌ. وخماسي پنج حرفي را گويند چون سفرجلٌ . وفعل دو قسم است . ثلاثي چون : ضرب . رباعي چون دحرج .**

## تشريح :

قوله اسم بر سه قسم است .

دلته نه داسم متمكن جامد تقسيم شروع کيږي يعنې اسم متمكن (۱) په اعتبار دتعداد دحروف اصليه سره په درې قسمه دي : ۱- ثلاثي ۲- رباعي ۳- خماسي ثلاثي الخ په ضمه دثاء سره دا ثَلاثة په فتح د ثاء سره طرف ته منسوب دي ضمه دثلاثي دنسبت دوجې نه ده دغه شان رباعي خماسي هريو اربعةٌ اوخمسةٌ طرف ته منسوب دي .

**سوال :** اسم خواحادي اوثنايي هم وي لکه کاف دخطاب او ما مَنْ پس دايې ولې ذکرنه کړل ؟

**جواب :** دا اسماء غيرمتمكنه دي اودلته خو تقسيم داسماء متمكنهٔ دي .

**سوال :** واضع اسم سداسي ولې وضع نه کړو ؟

**جواب :** ۱- دثقل نه دبچ کيدلو په خاطر ۲- دالبتاس نه دبچ کيدلو په خاطر ځکه چه دکلمې صالح بناء کم از کم درې دي نودسداسي په صورت کې دا وَهَمْ پيداکيدلو چه دايوه کلمه ده اوکه دوه کلمې دي .

---

(۱) مصنف ددې اقسامو مقسم اسم جامد مقرر کړو نه مطلق اسم معرب ځکه چې مصدر خماسي نه وي او داسم معرب تقسيم دې اقسامو طرف ته ددې خبرې مقتضي دې چې مصدر خماسي وي .

**قوله : فعل بردوقسم است** (١) : دفعل نه مراد فعل متصرف دې فعل اومصدر او اسم مشتق په دوه دوه قسمه دي . ١ - ثلاثي . ٢ - رباعي دفعل ثلاثي مثال : ضَرَبَ دفعل رباعي مثال : دَحْرَجَ دمصدر ثلاثي مثال : ضَرْبٌ دمصدر رباعي مثال : دَحْرَجَةٌ داسم مشتق ثلاثي مثال لکه ضَارِبٌ داسم مشتق رباعي مثال لکه مُدَحْرَجٌ .

**سوال :** واضع فعل خماسي ولې وضع نه کړو ؟

**جواب :** که چرته فعل يې خماسي وضع کړې وې نو دهغه سره چه کله کلمه ضمير مرفوع متصل پيوسته کيدلو نو هغه دوه دوه خرابئ به راتلې چه کومې داسم سداسي کيدلو په صورت که راتلې .

## بدان که میزان در کلام عرب فا وعین ولام است :

**تشریح :**

**سوال :** ميزان يې دکلام عربي سره ولې خاص کړو ؟

**جواب :** دميزان تخصيص دکلام عربي سره دمقصود دوجې دې .

**سوال :** دميزان عرض څه دې ؟

**جواب :** دميزان نه عرض دحروفِ اصليه او حروفِ زوائدو جدا والې مقصود دې نه پيژندل .

**سوال :** دميزان لپاره په نهويشت (٢٩) حروف هجاکې صرف دفاء ، عين او لام انتخاب ولې وکړې شو ؟

**جواب :** حروف په لحاظ دمخارجو سره په درې (٣) قسمه دي : شفوي ، وسطي اوحلقي . دميزان لپاره ددرې وارو نه يو يو حروف واخيستلې شو نو ټول درې شو دشفوي نه فاء دوسطي نه لام دحلقي نه عين .

**سوال :** اول فاء بيا عين بيا لام ددې ترتيب څه وجه ده ؟

**جواب :** دميزان لپاره دداسې کلمې ضرورت وو چه کومه اعمّ افعال وه يعنې ټولو افعالو (کارونو) ته شامله وه کله چې دې حروفو لره دا قسم ترتيب ورکړې شو نو ددېنه کلمه جوړه شوه فعل په معنی دکار سره اوس په دنيا کښې چه څومره کارونه کيږي هغې لره لفظ دفعل شامل دې

(١) فعل سره دټولو اقسامو او ټول هغه اسماء چې دفعل نه مشتق دي او مصدر په دوه قسمه دي ثلاثي او رباعي نه خماسي وجه داده چې فعل دتصرف او دپيوست والې دضمائرو په لحاظ سره داسم نه ثقيل دې لهذا چه کله فعل خماسي الاصل نشي راتلې نو مصدر او مشتقات چې دفعل تابع دي هغوي هم خماسي الاصل نشي راتلای .

خلاصه داچه مقصود پدې حروفو اوپه دغه ترتیب سره پوره کیدلو، ددې دوجې نه دمیزان لپاره دا حروف په دې ترتیب سره خاص کړې شول.

**سوال :** دمیزان لپاره دثلاثي وزن ولې انتخاب کړې شو؟

**جواب :** که میزان رباعي کیدلې نو دثلاثي وزن جوړولو په وخت کې به یو حرف کم کول ضروري وې که خماسي کیدلې نو درباعي وزن جوړولو په وخت کې به یو حرف کمولو ضروري وې دثلاثي وزن جوړولو په وخت به دوه حرفه کمول لازمیدې نو دکم کولو نه زیاتول بهتر دي.

**وحرف بردو قسم است حرفِ اصلي وحرف زائده . حرفِ اصلي ان است که درمقابله فاوعین ولام بود چون ضَرَبَ بروزن فَعَلَ . وحرفِ زائد آن است که درمقابل این حرف نبود چون اَکرَمَ بروزنِ اَفعَلَ :**

## تشریح :

حروف په دوه قسمه دي : ۱- حرف اصلي . ۲- حرف زائده .

**حرف اصلي :** حرف اصلي هغه دي چه په مجرد اومزید ټولو گردانونوکې راخي یعنې : ماضي، مضارع، اسم فاعل، اسم مفعول، جحد، امر، نهي، اسم ظرف، لکه : **ضرب** اوس ضاد، را، با، په ټولو گردانونو کې به موجود وي . **یَضرِبُ، ضَارِبٌ، مَضرُوبٌ**، وغیره .

**دحرف اصلي حکم :** دادې چه دوزن ویستلو په وخت کې ددې حروفو په مقابله کې به فاء عین لام راوړ لکه **ضَرَبَ** په وزن د **فَعَلَ یَضرِبُ** په وزن د **یَفعِلُ** .

**حرف زائده :** هغه دي چه ددې باب په ټولوگردانونوکې رانشي بلکه چرته موجود وي او چرته موجود نه وي لکه د **یَضرِبُ** (یا) په **ضَارِبٌ** کې نشته دضارب (الف) په ضرب کې نشته الخ .

**دحروف زائده حکم :** دادې چه دوزن ویستلو په وخت کې دې حروفوپه مقابله کې به فاء عین لام نه راوړو بلکه په خپل ځاې به راخي لکه : **یَضرِبُ** په وزن د **یَفعِلُ** کې یا **ضَارِبٌ** په وزن د **فَاعِلٌ** کې الف په خپل ځاې باندې راغلې دي .

## اول تقسیم دحرف زائده :

حروف زائده په دوه قسمه ده :

۱- چه ماقبل دجنس نه وي . ۲- چه دخپل ماقبل دجنس نه، نه وي .

**حکم د اول قسم:** دادې چه داقسم حرف زائد دحروف هجادنهویشت (۲۹) حروفونه کیدلې شي او دوزن دویستلو په وخت کې په میزان کې چه کوم حرف دده دما قبل په مقابله کې راغلې وي هغه به ددې حرف زائد په مقابله کې هم راخي یعنې زائد حرف به دحرف اصلي تابع وي مثلا جَلْبَبَ په وزن فَعْلَلَ اوله با اصلي ده مقابله کې یې لام دې او دا دویمه بازائده ده په مقابله کې یې هم لام راخي .

**حکم ددویم قسم:** دادې چه داسې قسمه حرف زائد به د سَئَلْتُمُوْنِیْهَا دحرفو نه وي اوپه موزن کې چه په کوم شکل سره حرف زائد وي په وزن کې به هم په هغه شکل سره وي لکه : ضَارِبٌ په وزن د فَاعِلٌ .

## دویم تقسیم دحرف زائده (۱) :

حروف زائده په درې (۳) قسمه دي : ۱- زائده براي استشاق .

۲- زائده براي نقل باب . ۳- زائده براي الحاق .

**زائده براي استشاق :** دېته وايي چه دیوې کلمې نه دبلې کلمې جوړولو په وخت کې یو حرف زائد کړې شي د ضَرَبَ ماضي نه دیَضْرِبُ مضارع جوړولو په وخت کې (یا) زیاته شوې ده .

**زائده براي نقل باب:** دېته وایي چه دیوباب نه بل باب دجوړولو په وخت کې یوحرف زیات کړې شي لکه کَرَمَ (مجرد) اَکْرَمَ (مزید) جوړولو په وخت کې همزه زیاته شوېده .

---

(۱) دحروف زائده دپیژندلو درې طریقې دي : ۱- اشتقاق . ۲- غلبه . ۳- عدم النظیر . ۱- اشتقاق : کوم حرف چې په گردانو کې کله وي او کله نه وي لکه ضربا کې الف ضربوا کې واو ضربت کې تا الخ . ۲- غلبه : کوم چې په یو خاص مقام کې زیاتیږي لکه تا چې په حالت دوقف کې ها جوړیږي په هغه وخت کې ددې تا نه ما قبل کلدرې حروف وي لکه : حبة بروزن فعلة یا لکه الف نون زائدتان کوم چې دکلمې په آخر کې زیاتیږي کله چې ماقبل ددې نه درې حروف وي لکه سلطان بروزن فعلان . ۲- عدم نظیر : که مونږ چرته ددې کلمې ټول حروف اصل وگنړو او بیایې وزن وباسو نو داسې وزن به حاصل شي چې په عربي ژبه کې به داسې بله کلمه نه وي لکه قرنفل که ددې ټول حروف اصل خیال کړې شي نو ددې وزن به وي ... فعللل چې لغت عربي کې دانشته لهذا معلومه شوه چې نون پکې زائد دې او س به راځي : فعنلل دادیوې ونې نوم دې .

**زائده براي الحاق :** دېته وايي چه يوه كلمه دبلې كلمې سره د هموزن كولو په وخت كې يوحرف زيات كړې شي لكه جَلَبَ د دَحْرَجَ سره د هموزن كولو په خاطر دويمه (باء) زياته كړې شوه نو جَلْبَبَ شو .

**داول قسم پيژندل :** كوم زائد چه دفعل ماضي معلوم په صيغه واحد مركز غائب كې نه وي لكه ضَرَبْتُ كې (تا) زائده ده كومه چه په ضَرَبَ كې نشته .

**دويم قسم پيژندل :** كوم حرف چه په صيغه واحد مركزغائب ماضي معلوم مزيد كې وي اودهغې ماده په مجرّد كې نه وي لكه أكْرَمَ (مزيد) كې همزه د كَرُمَ (مجرّد) نه زياته كړې شوې ده .

**ددريم قسم پيژندل :** ددې ځه خاص طريقه نشته ځكه ددې خاص تعلق دسماع سره دې قياس لره پدې كې دخل نشته زوائداشتقاق اوزوائدنقل باب دمعنوي عرض لپاره راوړلې شي او زوائد الحاق صرف عرض لفظي لپاره راوړلې شي يعنې رعايت دوزن اوسجع الحاق نه صرف دوزن موافقت مقصود وي .

**فائده :** دصرفيانو په نزد په زوائدكې د زوائد نقل باب او زوائد الحاق ډيراعتبار وي .

## حروف اصلى در ثلاث سه است فا وعين ويک لاوم چون ضَرَبَ بروزن فَعَلَ وحرفِ اصلى در رباعي چهار است فاوعين ودولام چون دَحرَجَ بروزن فَعلَلَ وحرف اصلي درخماسي پنج است فاوعين وسه لامْ چون جَحْمَرِشْ بروزن فَعلِلْ :

**تشريح :**

حروفِ اصلي په ثلاثي كې درې دي فاء عين لام اوپه رباعي كې څلور دي فاء عين اودوه لامونه اوخماسي كې پنځه دي فاء عين اودرې لامونه .

**سوال :** په رباعي اوخماسي كې لام په تكرار سره راوړو فاء عين يې ولې رانه وړل ؟

**جواب :** زيادت هميشه په آخركې كيږې اولام چونكې په آخر كې ؤ ددې وجې نه لام يې په تكرار سره راوړو

**ثلاثي بردو قسم است، ثلاثي مجرد وثلاثي مزيدفيه ثلاثي مجرد آنست كه برسه حرف اصلي او چيزى زياده نبود چون ضَرَبَ بروزن فَعَلَ وثلاثي مزيد فيه آن است كه برسه حرف اصلي او چيزى زياده بود چون اَكْرَمَ بروزن اَفْعَلَ ورباعي نيز بردو قسم است رباعي مجرد ورباعي مزيد فيه، رباعي مجرد آن است كه بر چار حرف اصلي او چيزي زياده نبود چون دَحْرَجَ بروزن فَعْلَلَ ورباعي مزيد فيه آن است كه بر چهار حرف اصلي او چيزى زياده بود چون تَدَحْرَجَ بروزن تَفَعْلَلَ، خماسي نيز بردوقسم است خماسي مجرد وخماسي مزيدفيه . خماسي مجرد آن است كه برپنج حرف اصل او چيزى زياده نبود چون جَحْمَرِشٌ بروزن فَعْلَلِلٌ خماسي مزيد فيه آن است كه بر پنج حرف اصلي او چيزى زياده بود چون خَنْدَرِيْسٌ بروزن فَعْلَلِيْلٌ :**

## تشريح :

**فائده:** دفعل ثلاثي مجرد او مزيد دارومدار دفعل ماضي په صيغه واحد مركز غائب باندې دې يعني چه دصيغهٔ واحد مركزغائب فعل ماضي درې واړه حروف اصلي وي اويوحرف يې هم زائد نه وي نوټول گردان ته به ثلاثي وئيل كيږي لكه ضَرَبَ كه چرته د درې حروفِ اصليه نه ماسوى يوحرف زائد وي نوټول گردان ته به مزيد وئيلې كېږي لكه : اَكْرَمَ ځكه چه د زوائد اشتقاق دمجرد او دمزيد په مسئله كې دمزيدڅه اعتبارنشته، درباعي مجرد اومزيدواضح والې په ثلاثي مجرد او مزيد باندې قياس كړئ!

**فائده:** افعالو كې حروف اصلي او زوائد چه يوځاې شي شپږو(٦) پورې كيداې شي(١) اوپه اسمونو كې اوه پورې كيداې شي .(٢)

---

(١) تنبيه : يو فعل به هم دشپږو حروفو نه تجاوز نه كوي تانيث، علامات تشنيه علامات جمع وغيره دا غير معتبر گڼرلې شويدي پس استخرجتُ يستخرجان يستخرجون پشان كلماتو باندې اعتراض نه واردېږي چه كوم دشپږو حروفونه زيا تو باندې مشتمل دي

(٢) پيژندل پكاردي چه اوه(٧) حروفو نه مراد هغه حروف دي چه ماسوى وي دتاي تانيث نه الف تانيث اويايې نسبت اويايې تصغير او علامات تشنيه او علامات جمع نه لهذا مستخرجات، مستخرجن پشان كلمات چه اتو او نهو ته رسيدلي دي دوي باندې به اعتراض نه واردېږي .

**دفعل ثلاثي مثالونه :**

چه یوحرف زائد وي لکه **اَکْرَمَ** په وزن د **اَفْعَلَ** چه دوه حروف زائد وي لکه **تَضَارَبَ** په وزن د **تَفَاعَلَ** چه درې حروف زائد وي لکه **اِسْتَخْرَجَ** په وزن د **اِسْتَفْعَلَ** .

**دفعل رباعي مثالونه :**

چه یوحرف زائد وي لکه **تَدَحْرَجَ** په وزن د **تَفَعْلَلَ** چه دوه حروف زائد وي لکه **اِحْرَنْجَمَ** په وزن د **اِفْعَنْلَلَ** .

**داسم جامدثلاثي مثالونه:**

چه یو حرف زائد وي لکه **حِمَارٌ** په وزن د **فِعَالٌ** چه دوه حروف زائد وي لکه **سُلْطَانٌ** په وزن د **فُعْلَانٌ** چه درې حروف زائد وي لکه **قُلَنْسُوَةٌ** په وزن د **فَعَنْلُوَةٌ** چه درې حروف اصلي وي اوځلور زائد وي په اسماء جامد کې ددې مثال تراوسه پورې دنظرنه تیر شوې نه دې .

**داسم جامد رباعي مثالونه :**

چه یوحرف زائد وي لکه : **صَنْدُوقٌ** په وزن د **فَعْلُولٌ** چه دوه حروف زائدوي لکه : **عَنْكَبُوتٌ** په وزن د **فَعْلَلُوتٌ** چه درې حروف زائدوي لکه **عَبُوثَرَان** په وزن د **فَعُوْلَلَان** .

**داسم جامد خماسي مثالونه :**

چه یو حرف زائد وي لکه : **خَنْدَرِيْسٌ** په وزن د **فَعْلَلِيْلٌ** چه دوه حروف زائد وي لکه **اِصْطَفْلِيْنَ** په وزن د **فِعْلَلِيْنَ** په معنی دګاځرې .

**داسم جامد مجرد اوزان:**

داسم جامد ثلاثي مجرد په اوزانوکې عقلي احتمالات دولس(۱۲) وو یعنې فاکلمه کې درې حرکات ضمه، فتح، کسره ، باقي سکون دابتدا له وجې محال دې اوعین کلمه کې ځلور احتمالات دي ضمه، فتح، کسره، سکون، لام کلمه چونکه محال داعراب دې لهذا ددې دحرکت څه اعتبارنشته نو دفاکلمې درې احتمالاتو لره دعین کلمې ځلور احتمالاتو کې ضرب ورکولو سره دولس(۱۲) احتمالات جوړیږي، مګراستعمال کې صرف لس(۱۰) احتمالات دې اوهغه دادې **فَعْلٌ** لکه **فَلْسٌ**(پیسه) **فَعَلٌ** لکه **فَرَسٌ** (اس) **فَعِلٌ** لکه **كَتِفٌ** (اوګه) **فَعُلٌ** لکه **عَضُدٌ فُعُلٌ** لکه (عالم) **فِعَلٌ** لکه **عِنَبٌ** (انګور) **فِعِلٌ** لکه **اِبِلٌ** (اوښ) **فُعْلٌ** لکه **قُفْلٌ** (تالا) **فُعَلٌ** لکه **صُرَدٌ** (کنجکه) **فُعُلٌ** لکه

عُنُقٌ (گردن) دوه احتماله دثقل دوجې نه، نه دي استعمال شوي هغه دادي : فُعِلٌ په ضمه دفا اوکسره دعین سره فِعُلٌ په کسره دفااوضمه دعین .

**داسم جامدثلاثي مزیدفیه اوزان :**

دثلاثي مزیداسم جامداوزان عندالمحققین غیرمحدود دي . صرف امام سیبوې صاحب وئیلي دي چه درې سوه اته (۳۰۸) دي .

**داسم جامد رباعي مجرّد اوزان :**

داسم جامد رباعي مجرد دقیاس په اعتبار سره اته څلویښت (۴۸) اوزان جوړیږي ځکه چه په فاکلمه کې درې احتمالات دي اودعین کلمه کې څلور احتمالات دي بیا درې لره چه په څلور کې ضرب ورکړې نودولس (۱۲) احتمالات جوړیږي . بیا لام اول کې څلوراحتمالات دي دولس (۱۲) له چې په څلورکې ضرب ورکړې نواته څلویښت (۴۸) شول لیکن استعمال کې صرف پنځه اوزان دي فَعْلَلٌ لکه جَعْفَرٌ (دسړي نوم دي) فِعْلَلٌ لکه زِبْرِجٌ (ارآئش) فُعْلَلٌ لکه بُرْثُنٌ (پنجه دشیر) فعللٌ لکه دِرْهَمٌ (۱) (دچاندۍ سکه) فِعَلّْ لکه قِمَطْرٌ (صندوق) .

**داسم جامد خماسي مجرّد اوزان :**

اسم جامد خماسي مجرد کې عقلي احتمالات یو سل دوه نوي (۱۹۲) دي او هغه داچې دلام ثاني احتمالات اربعه لره چې درباعي مجرّد اته څلویښت (۴۸) احتمالاتوکې ضرب ورکړې نویوسل دوه نوي (۱۹۲) احتمالات جوړیږي لیکن په استعمال کې صرف څلوراحتمالات دي فَعَلَّلٌ لکه سَفَرْجَلٌ (میوه ابهي) فُعَلِّلٌ لکه قُذَعْمِلٌ (شترقوي) (۲) فَعْلَلِلٌ لکه جَحْمَرِشٌ (پیرزن، زن بدخو، بدخویه ښځه) فِعْلَلٌ لکه قِرْطَعْبٌ (چیز قلیل، لږ شې)

**داسم جامد خماسي مزید فیه اوزان :**

داسم جامد خماسي مزید فیه اوزان پنځه دي فَعْلَلُوْلٌ لکه عضرفوط (چرمخکۍ) فَعْلَلِیْلٌ لکه خُذَعْبِیْلٌ (باطل شې) فُعْلَلُوْلٌ لکه قِرْطَبُوْسٌ (ناقهٔ بزرگ ومصیبت) فَعَلَّلَی لکه قَبَعْثَرَی (بچه شترلاغر) فَعْلَلِیْلٌ لکه خَنْدَرِیْسٌ (زاړه شراب) نور اوزان شاذ دي

(۱) دا د چاندۍ سکه ده چې وزن ئې دې ماشې یوه رتۍ ایک بټه پانچ جوړیږي

(۲) دا یو ماغه دي چې هغه ته (په ... ) اوبال کیږي

**بدانکه جمله اقسامِ اسم وفعل ازهفت اقسام بیرون نیست ، بیت :**
**صحیح است و مثال است و مضاعف - لفیف وناقص ومهموز واجوف .**
**صحیح آن است که مقابله فاوعین ولام اسم یا فعل حرف علت وهمزه تضعیف نبود چون ضَرَبٌ ضَرَبَ بروزن فَعْلٌ فَعَلَ وحرف علت سه است : واو،الف،یا چون جمع کني واي شود. مهموز آن است که دروي همزه مقابل فایاعین یالام اسم یافعل بود آن برسه قسم است مهموز الفاء، مهموزالعین،مهموزاللام مهموز الفاء آن است که مقابله فاکلمهٔ اسم یا فعل همزه بود چون اَمْرٌ اَمَرَ بروزن فَعْلٌ فَعَلَ ومهموز العین آن است که درمقابله عین کلمهٔ اسم یافعل همزه بود چون سَئَلٌ سَئَلَ بروزن فَعَلٌ فَعَلَ مهموز اللام آن است که درمقابله لام کلمهٔ اسم یافعل همزه بود چون قَرَءٌ قَرَءَ بروزن فَعَلٌ فَعَلَ :**

**تشریح :**

قوله اسم وفعل : دلته داسم نه مُراد اسماء متمکنه او دفعل نه مُراد افعال متصرفه دي یعنې اسماء متمکنه او افعال متصرفه په اعتبار داقسامو دحروفو سره په اوه (۷) قسمه دي :
اصول څلور (۴) دي : (۱) صحیح (۲) معتل (۳) مضاعف (۴) مهموز .
فروع لس (۱۰) دي : ۱- مهموز الفاء . ۲- مهموزالعین . ۳- مهموزاللام . ۴- مثال . ۵- اجوف . ۶- ناقص ۷- مضاعف ثلاثي . ۸- مضاعف رباعي . ۹- لفیف مقرون . ۱۰- لفیف مفروق .

**سوال :** په دې تقسیم کې یې صرف د اصول یاصرف دفروع لحاظ ولې ونکړو اصول سره یې بعضې فروع ذکر کړل ؟

**جواب :** مصنف داصولو لحاظ خو کړې دې مګر دمعتل فروع یې هم ذکر کړل ځکه دا فروع په استعمال کې په مثل داصول دي لهذا دې ته یې هم داصولو مرتبه ورکړه

**صحیح :** هغه کلمه ده چې فا ، عین، لام په مقابله کې یې حرف علت ، همزه او دوه صحیح حروف دیوجنس نه نه وي لکه ضَرَبَ ضَرْبٌ په وزن فَعَلَ فَعْلٌ .

**وجهٔ تسمیه دصحیح :** صحیح تـه صحیح ځکه وایي چې دصحیح معنٰی ده تندرست چونکه داکلمه هم دحرف علت او همزه دبیمارونه سالمه وي لدې وجې نه دېته صحیح وایي . دصحیح دویم نوم سالم هم دې خو صحیح عام وي دسالم نه .

**حرف علت :** حروف علت درې دي : واو . الف . یا .

**مهموز :** مهموز هغه کلمې ته وایي چې فا ، عین، لام، مقابله کې یې همزه وي . بیا مهموز په درې قسمه دې . ۱- مهموز الفاء . ۲- مهموز العین . ۳- مهموز اللام .

**مهموز الفاء :** چه په مقابله دفاکلمه کې که اسم وي او که فعل وي، همزه راغلې وي لکه : **اَمْرٌ** اَمَرَ په وزن د **فَعْلٌ فَعَلَ** .

**مهموز العین :** چه په مقابله دعین کلمه کې کـه اسـم وي او کـه فعـل وي همزه راغلې وي لکـه : سَئَلٌ سَئَلَ په وزن د **فَعْلٌ فَعَلَ** .

**مهموز اللام :** چه په مقابله د لام کلمه کې که اسم وي اوکه فعل وي همزه راغلې وي لکه : **قَرَءٌ** قَرَءَ په وزن د **فَعْلٌ فَعَلَ** .

**وجهٔ تسمیه دمهموز:** مهموز تـه مهموز ځکـه وایي چې دمهموز معنٰی ده همزه ورکړې شوې چونکه پدې کې هم همزه وي ځکه ورته مهموز وایي، دمهموز معنٰی کوز پشت ( ملاټیټي) هم راځي چونکه کومه کلمه کې چې همزه وي هغې لره یې هم کږه کړې وي دې وجې نه ورته مهموز وا یي .

**ومضاعف آن است که دو حرف اصلي او یک جنس بود مضاعف بر دوقسم است ، مضاعف ثلاثي ، مضاعف رباعي ، مضاعف ثلاثي ان است که درمقابله عین ولام اسم وفعل دو حرف از یک جنس بود چون مَدٌّ ومَدَّ بروزن فَعْلٌ فَعَلَ که دراصل مَدْدٌ مَدَدَ بود . ومضاعف رباعي آن است که در مقابله فا ولام اول عین ولام ثاني اسم وفعل دو حرف از یک جنس بود چون زَلْزَلَ زِلْزَالاً بروزن فِعْلَلَ فِعْلَالاً :**

**تشریح :**

**قوله مضاعف :** دا هغه کلمه ده چې دې کې دوه حروف صحیحه دیوجنس نه دحروف اصلیه په مقابله کې راغلې وي

مضاعف په دوه قمسه دي : ۱- مضاعف ثلاثي . ۲- مضاعف رباعي

**مضاعف ثلاثي :** هغه کلمې ته وايي چې په دې کې دوه حروف صحيحه ديو جنس نه دحروف اصليه په مقابل کې راغلي وي لکه مَدٌّ ومَدَّ په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ چې په اصل کې مَدْدٌ مَدَدَ دي

**مضاعف رباعي :** هغه کلمې ته وايي چې په دې کې دوه حروف صحيحه ديو جنس نه دحروف اصليه په مقابله کې وي لکه : زَلْزَلَ زِلْزَالاً په وزن د فِعْلَلَ فِعْلَالاً .

**وجهٔ تسميه:** مضاعف ته مضاعف ځکه وايي چې دمضاعف معنی ده دو چنده کړې شوې چونکه په دې کې هم دوه حروف ديوجنس نه وي لهذا ځکه ورته مضاعف وايي

**ومثال آن است که درمقابله فا کلمه اسم یا فعل حرف علت بود چون وَعْدٌ وَعَدَ بروزن فَعْلٌ فَعَلَ . و اجوف آن است که درمقابلهٔ عین کلمه اسم یافعل حرف علت بود چون قَوْلٌ وقَالَ بروزن فَعْلٌ فَعَلَ . وناقص آن است که درمقابله لام کلمه اسم یا فعل حرفِ علّت بود چون رَمْيٌ رَمٰی بروزن فَعْلٌ فَعَلَ . ولفیف آن است که دوحرف اصلي او حرف علت باشند . ولفیف بردو قسم است : لفیف مقرون ولفیف مفروق . لفیف مقرون آن است که درمقابله عین ولام اسم یا فعل حرف علت بود چون طَيٌّ وَطَوٰی بروزن فَعْلٌ فَعَلَ ولفیف مفروق آن است که درمقابله فا ولام کلمه حرف علت بود چون وَشْيٌ وَشٰی بروزن فَعْلٌ فَعَلَ :**

**تشریح :**

**مثال :** چه په مقابله دفاکلمه کې حرف علت وي . بيامثال په دوه قسمه دي : ۱- مثال واوي . ۲- مثال يايي :

**مثال واوي :** هغه کلمه ده : چې په مقابله دفاکلمه کې يې واو وي لکه : وَعْدٌ وَعَدَ په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**مثال يايي:** هغه کلمه ده : چې په مقابله دفاکلمه کې يې يا وي لکه : يَسْرٌ يَسَرَ په وزن فَعْلٌ فَعَلَ

**وجهٔ تسمیه** : مثال ته مثال ځکه وايي چې ددې معنی ده هَم مثله کیدل (یوشان کیدل) او دا هم دقلت تعلیل په بناء باندې په شان دصحیح وي، ددې وجې نه دېته مثال وايي

**سوال** : مثال الفي يې ولې رانه وړو حال دادې چې الف هم دحروف علت څخه دې ؟

**جواب** : الف همیشه لپاره ساکن وي او ابتداء په ساکن باندې محاله ده لهذا ځکه يې مثال الفي رانه وړو .

**اجوف** : هغه کلمه ده چې عین مقابله کې يې حرف علت وي، بیااجوف په دوه قسمه دې
۱- اجوف واوي ۲- اجوف یايي .

**اجوف واوي** : هغه کلمه ده چې دعین په مقابله کې يې واو وي لکه : قَوْلٌ قَوَلَ په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**اجوف یايي** : هغه کلمه ده چې دعین مقابله کې يې یا وي لکه : بَيْعٌ بَيَعَ په روزن فَعْلٌ فَعَلَ .

**وجهٔ تسمیه** : اجوف ته اجوف ځکه وايي چې : داجوف معنی ده خالي نوددې کلمې په مینځ (عین) کې حرف علت وي چې هغه په تعلیل سره ساقطیږي یابدلیږي مطلب داچې ثابت نه پاتې کیږي . ددې مناسبت په وجه ورته اجوف وايي .

**ناقص** : هغه کلمه ده چې دلام کلمې په مقابل کې حرف علت راغلې وي . بیاناقص په دوه قسمه دې : ۱- ناقص واوي . ۲- ناقص یايي .

**ناقص واوي** : هغه کلمه ده چې دلام کلمې په مقابل کې يې واو وي لکه دَعْوٌ دَعَوَ په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**ناقص یايي** : هغه کلمه ده چې دلام کلمې په مقابله کې یا وي لکه رَمْيٌ رَمَی په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**وجهٔ تسمیه** : ناقص ته ناقص ځکه وايي چې دناقص معنی ده نقصان والانو دلته دلام کلمې په مقابله کې حرف علت وي چې تعلیل سره ساقطیږي یابدلیږي نو په کلمه کې نقصان پیداکیږي . ددې مناسبت په وجه ورته ناقص وايي .

**سوال** : د اجوف الفي او ناقص الفي ذکر يې ونه کړو حالانکه دا هم دحروف علت څخه یو حرف دې ؟

**جواب** : صاحب ددستورالمبتداء یوه قاعده لیکلې ده چې الف په افعال متصرفه او اسماء متمکنه کې اصل نه راځي بلکه د واو او یانه به بدل کې راغلې وي ، اجوف او ناقص الفي کیدلې شي لیکن په استعمال کې ملاؤ شوې نه دې

**لفيف** : هغه كلمه ده چې دوه حروف اصليه دحروف علت څخه پکې راغلي وي بيا لفيف په دوه قسمه دې : ۱ - لفيف مقرون . ۲ - لفيف مفروق .

**لفيف مقرون** : هغه کلمه ده چې دعين او لام په مقابله دوه حرف علت وي لکه طَوْيٌ طَوى په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**لفيف مفروق** : هغه کلمه ده چې دفا او لام مقابله کې دوه حرف علت وي لکه وَشْيٌ وَشَى په وزن د فَعْلٌ فَعَلَ .

**وجهٔ تسميه** : دلفيف معنى ده تاؤ کړې شوې چونکه دې کلمه کې حروف اصليه زيات تر دحروف علت څخه وي گويا دا کلمه په حروف علت کې تاؤ کړې شوې وي .

**سوال** : دلفيف مقرون دغه مذكوره تعريف په وَيْلٌ يَوْمٌ باندې صادق نه دې حالانکه دا کلمات هم مقرون دي ؟

**جواب** : دلفيف مقرون دغه مذكوره تعريف اكثري دې كلي نه دې اصل کې تعريف داسې دې چې هر هغه کلمه چې په هغې کې دوه حروف اصليه دحروف علت څخه وي بلا فصل يعني بغير دڅه فصل نه يعني دحروف علت په مينځ کې بل حرف نه وي راغلې بيا عامه ده دفا عين په مقابله کې وي لکه ويل يوم باقي په فعل کې دوه حروف علت فا عين مقابله کې نه راځي : كذا في شرح الشافية . يا فا عين لام مقابله کې لکه يوى په وزن دفعل .

**باز اسم بر دوقسم است : اسم جامد ، اسم مصدر : اسم جامد آن است كه از وى چيزي اشتقاق كرده نشود چون : رَجُلٌ وَفَرَسٌ واسم مصدر آن است كه ازوى چيزى اشتقاق كرده شود در آخر معنى فارسي ان دال ونون يا تاونون باشد چون الضَّرْبُ زدن وَالْقَتْلُ كشتن :**

**تشريح :**

دادا اسم متمکن دريم قسم دې په اعتبار د مشتق او غير مشتق کيدو او په دې کې درې اقوال دي .

**اول قول** : اسم په دوه قسمه دې : ۱ - جامد . ۲ - مصدر ددوي مشتق دفعل تابع کوي

**دويم قول** : اسم په دوه قسمه دې : ۱ - جامد ۲ - مشتق . ددوي مصدر مشتق تابع کوي

**دريم قول** : اسم په درې قسمه دې ۱ - جامد ۲ - مصدر ۳ - مشتق عند المحققين دا قول اصح دې

**اسم جامد :** چه نه دفعل لپاره مأخذ وي او هغه پخپله هم دمصدر نه، نه وي جوړ صرف په ذات دلالت کوي لکه : رَجُل یعنې سړی .

**اسم مصدر :** چې دفعل لپاره مأخذوي او صرف په صفت دلالت کوي لکه : ضَرْباً یعنې وهل .

**اسم مشتق :** چې جوړ وي دمصدر نه بالواسطه وي او که بلاواسطه وي او په ذات مع الوصف دلالت کوي لکه ضَارِبٌ یعنې وهونکې ، مَضْرُوْبٌ یعنې وهلې شوې .

**بدانکه عرب از هر مصدر دوازده چیز را اشتقاق میکنند ماضي ومضارع واسم فاعل واسم مفعول وجحد ونفي وامر ونهي واسم زمان واسم مکان واسم آله واسم تفضیل . ماضي زمانه گزشته راگویند . مضارع آینده راگویند اسم فاعل نام کنندهٔ کار راگویند اسم مفعول نام کرده شده راگویند، جحد انکار ماضي نفي مستقبل امر فرمودن کاری نهي باز داشتن از کاری ، اسم زمان نام وقت کار کردن . اسم مکان جائی کردن کاری اسم آله آنچه کاری بوی کنند اسم تفضیل نام بهتر کارکننده راگویند :**

**تشریح :**

**سوال :** مصنف دفعل تعجب ذکر ولې ونکړو ؟

**جواب :** ۱- هغه فعل غیر متصرّف وؤ ځکه یې ذکر نه کړو . ۲- القلیل کالمعدوم دقاعدې موافق فعل تعجب یې په حصرکې رانه وړو . باقي گردان صغیر اوکبیر کې دطلباؤ داساتیالپاره لپاره ذکر شوې دي

**فائده :** دهر مصدر نه ددولس (۱۲) اشیاؤ داشتقاق خبره صرف دابتدائي طالبانو دسهولت لپاره ده ورنه حقیق دادې چې دثلاثي مجرد نه اته (۸) څیزونه، درې (۳) فعلونه او پنځه (۵) اسمونه یعنې ماضي، مضارع، امر، اسم فاعل، اسم مفعول، اسم ظرف، اسم آله، اسم تفضیل، او دغیر ثلاثي مجرد نه شپږ (۶) څیزونه درې (۳) فعلونه او درې اسمونه یعنې ماضي، مضارع، امر، اسم فاعل، اسم مفعول، اسم ظرف اشتقاق کیږي

## باب اول صرف صغير ثلاثي مجرد صحيح ازباب فَعَلَ يَفعِلُ چون اَلضَّرْبُ زدن الخ :

**قوله باب :** دباب لغوي معنى ده دروازه ، اصطلاحي معنى يي ده ګروه دالفاظو څرنګه چه په دنياکې په يو خاص ګروه باندې چې خپل مينځ کې يې تعلق وي دخاندان او قوم اطلاق کيږي دغه شان په علم الصرف کې هم هغه کلمات چې ديومأخذنه مشتق وي او لفظي او معنوي مناسبت په کې موجود وي نو د باب اطلاق پرې کيږي .

**قوله اول :** په ثلاثي مجرد کې اوليّت ديوباب خاصه نه ده بلکه کوم باب چه په صحيح کې ډير مستعمل دې هغه ته باب اوّل وايي کوم چې په مثال کې ډير مستعمل وؤ هغې ته هلته کې باب اوّل وويلې شو .

**قوله صرف :** په معنى دګردان سره .

**قوله صغير :** دا هغه دې چې يوه صيغه پکې دمعلوم وي بله دمجهول .

**سوال :** تا اووئيل چې صغير هغه دې چې يو صيغه په کې دمعلوم وي بله دمجهول نو مصدر يې ولې دوه (٢) ځله ذکر کړې دې ؟

**جواب :** مصدر يې دوه ځله ځکه ذکر کړو، دې طرف ته اشاره ده چې مصدر هم معلوم او مجهول وي ، د اوّلني ضَرْباً معنى ده وهل ددويم مصدر ضَرْباً ده وهلې کيدل .

**سوال :** د ضَارِبٌ نه مخکې فَهُوَ د مَضْرُوْبٌ نه مخکې فَذَاكَ او د اَلْاَمْرُ نه بعد مِنْهُ وغيره ولې راوړلې شو ؟

**جواب :** دمعنوي ربط په خاطر ګويا ويکونکې دا خبر ورکوي چې دې سړي وهل وکړه او وهل کوي پس هغه وهونکې دې او ووهلې شو وهلې کيږي يابه ووهلې شي پس هغه ووهلې شو، صيغه دامر ددې باب اِضْرِبْ راځي او نهي لَاتَضْرِبْ راځي لفظ دمِنْهُ چونکه په امر کې راغلې دې لهذا دطالبِ علم په فهم باندې داعتماد په خاطر د زيادت وضاحت ضرورت نشته .

**سوال :** داسم فاعل نه وړاندې فَهُوَ او داسم مفعول نه وړاندې فَذَاكَ يې ولې راوړو عکس به يې کړې وې ؟

**جواب :** **ذاك** اسم اشاره ده بعید ته او مفعول دفعل نه په نسبت سره فاعل ته بعید وي لهذا ددې مناسبت په وجه یې **فَذَاكَ** اسم مفعول سره او **هُوَ** داسم فاعل سره راوړل

**فائده :** داسماءِ مشتقّه یعنې اسم فاعل او اسم مفعول وغیرهما ټولې قیاسي صیغې شپږ دي درې دمذکر درې دمؤنث لپاره پدې کې به په غائب مخاطب متکلم باندې دلاس نه وي ځکه چې صَیغه دصفت په ذات مبهمه دلالت کوي او غائب وغیره په ذات معیّن دلالت کوي . باقي دمکسر او تصغیر صیغې موقوف دې په سماع باندې ، ددې لپاره څه قاعده نشته .

**فائده :** په اسم ظرف او اسم آلِه کې تذکیر او تانیث نه وي ځکه ځاې او وخت او آله مذکر مؤنث نه وي .

**فائده :** دتعلیل په لحاظ سره فعل اصل دې او مصدر دفعل فرع ده، او داشتقاق په لحاظ سره مصدر اصل دې او فعل یې فرع ده .

دقوانین دوئیلو نه وړاندې دڅو فوائدو وپیژندل ضروري دي .

**اوّله فائده :** لفظ قانون غیرعربي لفظ دې، په لغت کې قانون مسطرالکتاب (۱) ته وایي یعنې (پیمانه) هغه آله چې کرخې پرې سیده شي، او په اصطلاح کې دقانون معنی ده ((**قَاعِدَةٌ كُلِّيَّةٌ مُنْطَبِقَةٌ عَلَى جَمِيْعِ جُزْئِيَّاتِ مَوْضُوْعِهَا**)) یعنې هغه قاعده کلیه چې کومه دخپلې موضوع په ټولو جزئیاتو باندې هرځاې کې صادقه شي لکه څرنګه چې دنحوی قاعده ده دفاعل مرفوع کیدل یعنې هرچرته چې فاعل وي مرفوع به وي .

**دویمه فائده :** کله چې هم دقانون نوم اخستل کیږي نو دهغه اتفاقي مثال سره به اخستل کیږي یعنې کوم چې هم اتفاقي مثال دې هغه ددې قانون نوم دې .

**دریمه فائده :** حکم (۲) په دوه قسمه دې ۱- وجوبي ۲- جوازي .

**حکم وجوبي :** هغه دې چې صرف په یوه طریقه پرې عمل کیږي

**حکم جوازي :** هغه دې چې په مختلفو طریقو سره پرې عمل کیدلې شي

**څلورمه فائده :** شرط (۳) په دوه قسمه دې ۱- وجودي ۲- عدمي

**وجودي :** هغه شرط دې چې وجود یې ضروري وي

---

۱. مناسبت لغوي او اصطلاحي معنی کې دادې چې څرنګه مسطر (پیمانه) سره کرښې کږیدلو نه محفوظیږي همدارنګې انسان هم دقانون په ذریعه دصیغې دغلطۍ نه محفوظیږي .

۲. هو شيء مرتب على الشيء

۳. الشرط مايتوقف عليه وجود الشيء .

**عدمي :** هغه شرط دې چې وجود يې ضرورت وي .

بياهريو له وجودي او عدمي نه په دوه قسمه دي :

۱- وجودي کامل . ۲- وجودي ناقص . ۳- عدمي کامل . ۴- عدمي ناقص .

**وجودي کامل :** هغه دې چې فقط ديو شرط موجود کيدلو سره حکم دقانون جاري کيږي .

**وجودي ناقص :** چې فقط ديو شرط په موجوديدلو سره حکم دقانون نه جاري کيږي .

**عدمي کامل :** هغه دې چې فقط ديو شرط نه موجود کيدلو سره حکم دقانون جاري کيږي .

**عدمي ناقص :** چه دڅو شرائطو نه موجوديدلو نه پس حکم دقانون جاري کيږي .

**پنځمه فائده :** دمثال دوه قسمه دي : ۱- احترازي . ۲- اتفاقي .

**احترازي مثال :** هغه دې چې شرط پکې موجود نه وي .

**اتفاقي مثال :** هغه دې چې شرط پکې موجود وي .

## ۱- قانون : اجتماع دو علامت تانيث در فعل مطلقا ممنوع است در اسم وقتيکه ازيک جنس باشد :

ددې قانون نوم دې د ضَرَبْنَ اولنې قانون ، ددې لپاره يو حکم دې دفعل لپاره يو شرط دې او داسم لپاره دوه شرطونه دي .

**حکم :** دادې چې په دوه علامو دتانيث کې ديو حذف کول واجب دي .

**دفعل شرط :** دادې چې دوه علامې دتانيث (۱) په کې جمع وي مطلقاً احترازي مثال ضَرَبَتْ دلته يوه علامه دتانيث ده اتفاقي مثال : ضَرَبْتُنَّ يوه علامه د تانيث به حذف شي او ضَرَبْنَ وئيل واجب دي .

**داسم اول شرط :** دادې چې دوه علامې دتانيث جمع وي احترازي مثال : ضَارِبَةٌ دلته کې يوه علامه دتانيث ده

(۱) علامات دتانيث په نزد دصرفيانو اته (۸) دي څلور په اسم کې او څلور په فعل کې : په اسم کې څلور دادي : ۱- الف مقصوره زائده : لکه حبلی . ۲- الف ممدوده زائده لکه حمراء . ۳- تامتحرکه لکه ضاربة . تاء مقدره لکه ارضٌ چه اصل کې ارضةٌ دې . شافيه . په فعل کې څلور دادي : ۱- تاء ساکنه لکه ضربت . ۲- نون مفتوحه لکه ضربن . ۳- تاء متحرکة لکه ضربت . ۴- يا ساکنه لکه تضربين سوال : دوه علامات دتانيث کې تا حذف شوه نون ولې حذف نه شو . جواب : که نون حذف شوې وې نو التباس به راغلې وې دواحد مؤنث سره . فائده : دمفرد تالې تانيث دالف او تا په ځاې کې ساقطيږي دپاره ددې چې په يوشي کې اجتماع دعلامتينو دتانيث رانشي لکه دضاربة تا په ضاربات کې ساقطه شوه .

**داسم دویم شرط :** دادې چې دوه علامې دتانیث دیوجنس نه وي احترازي مثال : ضُرَيْبَاتٌ دلته یابدل دالف نه ده اودتادجنس نه نه ده اتفاقي مثال: ضَارِبَتَاتٌ نه ضَارِبَاتٌ وئیل واجب دي .

**سوال :** اثْنَتَا عَشْرَةَ کې دتانیث دوه علامې دي جنس یې هم یو دې حکماً هم یوه کلمه ده قانون پکې ولې جاري نه شو ؟

**جواب :** اِثْنَتَا اصل کې اثْنَيَا وؤ حقیقت کې یاده عارضي طور باندې تا جوړه شوې ده او دعارضي شي څه اعتبار نه وي .

## ۲- قانون : اجتماع اربع حرکات متوالیات دریک کلمه وحکم وی ممنوع است :

ددې قانون نوم دې دضَرَبْنَ دویم قانون : ددې لپاره یو حکم دې درې شرطه دي :

**حکم :** دادې چې دیو حرکت حذف کول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې څلورحرکات وي احترازي مثال : ضَرَبَ دلته درې حرکات دي .

**دویم شرط :** دادې چې پرله پسې وي یعنې مینځ کې ساکن نه وي احترازي مثال تَدَحْرَجَ دلته حاپه مینځ کې ساکنه ده .

**درېم شرط :** دادې چې څلور حرکات په یوه کلمه کې وي برابره خبره ده که حقیقةً (۱) یوه کلمه وي او که حکماً وي احترازي مثال ضَرَبَكَ . دانه حقیقةً یوه کلمه ده نه حکماً . اتفاقي مثال چې حقیقةً یوه کلمه وي دَحرَجَ دَحْرَجَ وئیل واجب دي دحکماً مثال ضَرَبَنَ نه ضَرَبْنَ وئیل واجب دي .

**اعتراض :** ضَرَبَةٌ کې ټول شرائط موجود دي بیاهم حکم دقانون پکې جاري نه دې ؟

**جواب :** په ضَرَبَةٌ کې دتاحرکت عارضي دې ځکه په حالت دوقف کې هاساکنه تړېنه جوړېږي .

**اعتراض :** عُلَبِطٌ (گوسفند) هُدَبِدٌ (شیر خفته) قانون ولې جاري نه شو ؟

**جواب :** دا اصل کې عُلَابِطٌ او هُدَابِدٌ وو الف ساکنه چې مینځ کې وؤ دتخفیف له وجې نه حذف شوې دي

(۱) کلمه په دوه قسمه ده : حقیقي او حکمي : کلمه حقیقي هغه ده چې واضع دیو معنی دپاره وضع کړې وي لکه دحرج . کلمه حکمي هغه ده چې واضع دیو معنی دپاره وضع کړې نه وي بلکه هره یوه کلمه یې جدا جدا معنی دپاره وضع کړې وي لیکن دهغوي خپل مینځ کې دومره سخت اتصال وي چې هغه حکماً یوه کلمه یادېږي هیڅ کله هم نه جدا کیږي لکه ضَرَبْنَ چې ضَرَبَ فعل اونون فاعل دې . دفعل فاعل مینځ کې اتصال شدید دې .

## ۳- قانون : هر واوې که واقع شود در اخر اسم غیر متمکن ما قبلش مضموم آن را حذف وماقبلش راساکن مي کنند وجوبا مگر واو هُوَ :

ددې قانون نوم دې قانون د ضَرَبْتُمْ او اَنْتُمْ . ددې یوحکم دې او شپږ شرطونه دي

**حکم :** حکم یې دادې چې واو به حذفیږي او ماقبل به ساکن کول واجب وي

**اول شرط :** دادې چې واو وي، احترازي مثال : حَيٌّ دلته یا ده .

**دویم شرط :** دادې چې واو یې په اخر کې وي احترازي مثال : اَنْزَلْتُمُوْهُ .

**دریم شرط :** دادې چې داسم په آخر کې وي احترازي مثال یَدْعُوْ دلته دفعل په آخر کې دې .

**څلورم شرط :** دادې چې اسم به غیر متمکن (۲) وي، احترازي مثال : اَدْلُوْ دا انسم متمکن دې .

**پنځم شرط :** دادې چې دواونه ماقبل مضموم وي احترازي مثال : ضَرَبْتُوْ .

**شپږم شرط :** دادې چې دغه کلمه دصالح بنانه کمه نه وي . احترازي مثال : هُوَ . دادصالح بناء نه کمه ده ، صالح بناء داسم او فعل داده چې په وخت دوضع کې کم ازکم به درې حروف وي اتفاقي مثال : ضَرَبْتُمُوْا اَنْتُمُوْا کې ضَرَبْتُمْ اَنْتُمْ ونیل واجب دي .

## ۴- قانون : در هر ماضي مجهول حروف متحرکه راحرکت ضمه وما قبل آخر راکسره باقي را برحال خود مي دارند وجوباً :

ددې قانون نوم دې قانون دماضي مجهول : دې لپاره یوحکم دې او یو شرط دې :

**حکم :** یې دادې چې حروفِ متحرکه لره به ضمه ورکړې ماقبل اخر به مکسور کړې او باقي په خپل حالت پرېښودل واجب دي .

**شرط :** یې دادې چې دماضي معلوم نه دماضي مجهول جوړولو اراده وي . احترازي مثال ضَرَبَ کله چې دماضي مجهول جوړولو اراده نه وي اتفاقي مثال ضَرَبَ اِحْدَوْدَبَ نه به ضُرِبَ، اُحْدُوْدِبَ وایي

**نوټ :** داقانون دټولو بابونو لپاره دي .

---

(۱) اسم په دوه قسمه دې : متمکن او غیر متمکن : اسم متمکن هغه دې چې دعامل عمل قبلوي دا معرب وي . او اسم غیر متمکن هغه دې چې دعامل عمل نه قبلوي دامبني وي .

## ۵- قانون : در هر مضارع مجهول برحرف اول ضمه وماقبل آخر را فتحه خواندان واجب است :

ددې قانون نوم دې دمضارع مجهول قانون  دې لپاره يوحكم دې او يو شرط دې

**حكم :** يې دادې چې اول حرف باندې ضمه او ماقبل آخر باندې وئيل واجب دي .

**شرط :** يې دادې چې دمضارع معلوم نه دمضارع مجهول جوړولو اراده وي احترازي مثال يَضْرِبُ دا هله چې دمضارع مجهول جوړولو اراده نه وي اتفاقي مثال د يَضْرِبُ نه يُضْرَبُ د يَعْلَمُ نه يُعْلَمُ ، د يُكْرِمُ نه يُكْرَمُ وئيل واجب دي .

## ٦- قانون : درهر اسم فاعل ثلاثي مجرد غالباً بروزن فاعل مي آيد واز غير ثلاثي مجرد بروزن فعل مضارع معلوم آن باب مي آيد بآوردن ميم مضموم بجائی حرف اتين وكسره دادن ماقبل آخر را اگر نباشد تنوين تمكن در آخرش درآرند وجوباً :

ددې قانون نوم دې داسم فاعل قانون  ددې دوه حكمونه دي دهرحكم لپاره يويو شرط دې .

**اول حكم :** يې دادې چې اسم فاعل (۱) په وزن دفاعل باندې غالباً وئيل واجب دي .

**شرط :** يې دادې چې دثلاثي مجرد باب وي احترازي مثال يُكْرِمُ يُدَحْرِجُ اتفاقي مثال يَضْرِبُ نه ضَارِبٌ وئيل واجب دي .

**دويم حكم :** يې دادې چې اسم فاعل به هم ددغه باب دفعل مضارع معلوم په وزن وئيل واجب وي لږه غونډې تبديلي به په كې كولې شي او هغه داچې دحرف مضارعت په ځاي به ميم مضمومه او ماقبل آخرله به كسره او آخر كې به تنوين تمكن چې علامه داسم دې راوړي .

**شرط :** يې دادې چې باب دثلاثي مجرد نه وي احترازي مثال يَضْرِبُ اتفاقي مثال : يُصَرِّفُ ، يُدَحْرِجُ نه مُدَحْرِجٌ او مُصَرِّفٌ وئيل واجب دي .

---

(۱) اسم فاعل دثلاثي مجرد نه اكثر دفاعل په وزن راځي كله نا كله دغير فاعل په وزن هم راځي كله چې مقصد مبالغه وي لكه عَلِمَ يَعْلَمُ نه عَلِيمٌ راځي دا صفت مشبه نه ده بلكه اسم فاعل دې دمبالغه معنى وركوي ځكه داباب متعدي دې او صفت مشبه دلازمي باب نه راځي .

## ۷- قانون هر مدّه زائده كه واقع شود در مكبر بدوم جا وقت بنا كردن جمع اقصی وتصغير آن را بواو ومفتوحه بدل كنند وجوباً .

ددې قانون نوم دې دمده زائده قانون : ددې پيژندلو لپاره يوه مقدّمه ضروري ده ، مقدمه كې درې فائدې دي :

**اوله فائده :** واو وايي چې مانه دې مخكې ضمه وي .

**دويمه فائده :** يا وايي چې مانه دې مخكې كسره وي .

**دريمه فائده :** الف وايي چې مانه دې مخكې فتحه وي .

ددې درې واړه حروفونه كله په مدّه سره كله په حرف لين سره كله علت تام سره تعبيركولې شي .

**مدّه :** به ورته په هغه وخت كې وئيلې شي چې كله حروف ساكن وي او دماقبل حركت موافق وي لكه **اُوْتِيْنَا** .

**لين :** به ورته هغه وخت وئيلې شي چې كله دا حرف ساكن وي اودماقبل حركت يې موافق نه وي لكه : **خَوْفٌ** ، **سَيْفٌ** . علت تام دې حروفو ته په هرحالت كې وئيل كيږي برابره خبره ده كه ساكن وي او كه متحرك دماقبل حركت موافق وي اوكه مخالف وي .

**دويمه فائده :** جمع اقصى هغه مكسرده چې بله جمع ترېنه نه جوړيږي دې ته منتهى الجموع اوجمع هم وايي لكه **اَقْوَالٌ** چې دا جمع مكسره ده د**قَوْلٌ** بيا ددې جمع **اَقَاوِيْلُ** راځي . دجمع اقصى دبناء طريقه داده چې اولنې دوه حروف به مفتوح كړې دريم ځاې كې به الف چې علامت داقصى دې، راوړې اوكه چيرته الف نه بعددوه حرفه وي نو اول حرف به مكسور كړې اودويم به په خپل حالت پريږدې ځكه دامحل داعراب دې لكه : **مِضْرَبٌ** (۱) نه **مَضَارِبُ** . كه چيرته الف اقصى نه بعد درې حروف وي نو اول حرف به مكسور وي دويم ساكن او دريم به په خپل حالت باندې وي لكه : **مَضْرُوْبٌ** (۲) نه **مَضَارِيْبُ** . دجمع اقصى اوزان دادي : **مَفَاعِيْلُ** . **مَفَاعِلُ** . **اَفَاعِيْلُ** . **اَفَاعِلُ** . **فَوَاعِلُ** .

---

(۱) مِضْرَبٌ چه كله دېنه جمع اقصى جوړوې نو اولني دوه حروفو ته به فتحه وركړې يعنې ميم اوضادته نومضرب به شي بيادريم ځاې كې الف علامت دجمع اقصى به راوړې نومَضَرِبٌ به شي الف نه پس دوه حرفه دي لهذا اول لره به كسره وركړې شي مضارِبٌ به شي .

(۲) مَضْرُوْبٌ كله چې ددې جمع اقصى جوړوؤ نو اول ددې حروف ته به فتحه يعنې ميم او ضاد ته بيابه دريم ځاې كې الف علامت دجمع اقصى راوړو نو مضارب به شي داالف نه پس درې حروف دي نو اول (ر) به مكسور دويم (واو) به ساكن . بيا دميعاد دقانون مطابق به مضاريب وايو .

**دريمه فائده :** تصغير وايي هغه كلمې ته چې په هغې کې تبديلي اوشي لپاره دحصول دمعنى محبت، قلت، حقارت او شفقت وغيره لكه : قُرَيْشٌ ، رُجَيْلٌ، ضُوَيْرِبٌ، بُنَيٌّ .

دتصغير دصيغې جوړولو طريقه داده چې اول حرف باندې ضمه دويم باندې فتحه او په دريم ځاې کې ياخو علامه دتصغير راوړې كه ديا نه پس يوحرف وي نو په خپل حالت باندې په پاتې شي لكه : رَجُلٌ . نه رُجَيْلٌ كه يا نه پس دوه حروفه وي نو اول به مكسور دويم به په خپل حالت پاتې شي لكه مِضْرَبٌ نه مُضَيْرَبٌ ديا نه پس درې حرف وي نو اول به مكسور دويم ساكن دريم به په خپل حالت باندې پاتې شي لكه : مَضْرُوْبٌ (۱) نه مُضَيْرِيْبٌ .

كه چرته څه مانع موجود وي نوبيا به ددې خلاف واقع كيږي لكه ضُرَبِيٌّ نه ضُرَيْبِيٌّ . دې لپاره يوحكم دې او پنځه شرطونه دي .

**حكم :** دادې چې مده به د واو مفتوحه سره بدلول واجب وي .

**اول شرط :** دادې چې مدّه وي احترازي مثال : قَوْلٌ بَيْعٌ .

**دويم شرط :** دادې چې مده هم زائد وي احترازي مثال : بَابٌ بِيْدٌ بُوْسٌ دا اصلي ده .

**دريم شرط :** دادې چې مكبر يعني اسم کې وي احترازي مثال : ضَارَبَ .

**څلورم شرط:** دادې چې مده په دويم ځاې کې وي احترازي مثال : ضُرْبِيٌّ . مَضْرُوْبٌ . شَرِيْفٌ .

**پنځم شرط :** دادې چې دجمع اقصى اودتصغير دجوړولو اراده وي، احترازي مثال ضَارَبٌ ضَارَبَةٌ اتفاقي مثال : دالف مده د ضَارِبَةٌ نه ضَوَارِبُ او ضُوَيْرِبَةٌ ديامده مثال د ضِيْرَابٌ نه ضَوَارِيْبُ ضُوَيْرِيْبٌ د واو (۲) مده مثال د طُوْمَارٌ نه طَوَامِيْرُ او طُوَيْمِيْرٌ .

**سوال :** الف او ياخو په واو سره بدليدې شي ليكن واو په واو سره څرنګه بدَليږي ؟. (۳)

---

(۱) مِطْرَبٌ چې كله دېنه تصغير جوړوؤ نو حرف اول (ميم) باندې به ضمه دويم (ضاد) باندې به فتحه دريم ځاې کې (يا) ساكنه يانه پس دوه حروف دي اول (را) به مكسور دويمه (با) به په خپل حالت باندې پريږدي نو مُضَيْرِبٌ به شي .

(۲) مَطْرُوْبٌ چې كله دېنه جوړوؤ نو حرف اول (ميم) باندې ضمه دويم (ضاد) باندې فتحه دريم ځاې کې يا ساكنه علامت تصغير به راوړو نو مُضَيْرُوْبٌ به شي بيا يانه پس حرف (را) باندې كسره بيا په قانون دميعاد باندې به مُضَيْرِيْبٌ شي .

(۳) انجاد الصرف والاو ئيلي دي چې په واو کې دا خبره شرط نه ده چې مده دې وي بلكه عام دې لكه : جَوْهَرٌ . كَوْكَبٌ قَوْلٌ لُوْزٌ نه قُوَيْلٌ لُوَيْزٌ جُوَيْهِرٌ كُوَيْكِبٌ .

**جواب:** تبديلي په دوه قسمه ده يوپه ذات کې بل په وصف کې ، ذات کې تبديلي دېته وايي چې يو حرف په بل حرف سره بدل شي لکه الف مدّه او يايې مدّه په واو مفتوحه سره بدلول وصف کې تبديلي دېته وايي چې حرف ديوحالت نه بل حالت ته بدل شي لکه د واو مدّه سکون په فتحه سره .

## ۸- قانون هر اسم مفعول از ثلاثي مجرد بروزنِ مَفعُولٌ مي آيد واز غير ثلاثي مجرّد بروزن فعل مضارع مجهول مي آيد باَوردن ميم مضمومه بجائي حرف اَتَين تنوين تمكن در آخرش درآرند وجوباً :

ددې قانون نوم دې داسم مفعول قانون . دې لپاره دوه حكمه دي هرحكم لپاره يو يوشرط دې .

**اول حكم:** دادې چې اسم مفعول به په وزن د مَفْعُوْلٌ باندې راخي وجوباً .

**شرط:** يې دادې چې باب دثلاثي مجرّد وي احترازي مثال يُكْرَمُ اتفاقي مثال يُضْرَبُ نه مَضْرُوْبٌ .

**دويم حكم:** يې دادې چې اسم مفعول ددغه باب دفعل مضارع مجهول په وزن باندې وئيل واجب دي خو معمولي غوندې تبديلي سره دحرف اتين په ځاې به ميم مضمومه او آخر کې به تنوين راوړې .

**شرط:** يې دادې چې دثلاثي مجردّ باب نه وي احترازي مثال : يُضْرِبُ اتفاقي مثال يُكْرِمُ نه مُكْرَمٌ يُدَحْرَجُ نه مُدَحْرَجٌ

## ۹- قانون : هرنون تنوين وقت دخول الف لام واضافت ونون تثنيه وجمع دروقت اضافت حذف كرده شود وجوباً .

ددې قانون نوم دې نون دتنوين اوتثنيه اوجمع قانون . ددې لپاره يو حكم دې او درې كامل شرطونه دي

**حكم:** يې دادې چې نون دتنوين اونون دتثنيه اونون دجمع حذف كول واجب دي .

**اول شرط:** يې دادې چې دكلمې په آخر کې نون دتنوين وي، دهغې په اول کې به الف لام داخل وي احترازي مثال حَمْدٌ اتفاقي اَلْحَمْدُ

**دويم شرط:** يې دادې چې دكومې كلمې په آخر کې تنوين وي اودهغې اضافت بلې كلمې ته شوې وي احترازي مثال غُلَامٌ اتفاقي مثال غُلَامُ زَيْدٍ دنون تثنيه اونون جمع شرط دادې چې په

كومه كلمه كې نون تثنيه اونون جمع وي دهغې اضافت بلې كلمې ته شوې وي احترازي مثال ضَارِبَانِ . ضَارِبُوْنَ . اتفاقي مثال ضَارِبَازَيْدٍ ضَارِبُوْزَيْدٍ .

**۱۰- قانون : هرنون (۱) تنوين كه ما قبلش مفتوح است درحالت وقف آن را بالف بدل كردن كثير وساقط كردن قليل است واگر ماقبلش مضموم يا مكسور است درحالت وقف آن رابحرف علت بدل كردن قليل وساقط كردن كثير است .**

ددې قانون نوم دې دنون تنوين قانون . ددې لپاره دوه حكمه دي دهر حكم لپاره درې شرطونه دي :

**اول حكم :** نون دتنوين په الف سره بدلول اكثر دي او ساقطول كم دي .

**اول شرط :** دادې چه نون تنوين وي احترازي مثال ضَارِبَانِ دانون تثنيه دي .

**دويم شرط :** دادي چه نون تنوين نه ماقبل مفتوح وي احترازي مثال غَفُوْرٌ إِلى حِيْنٍ دلته ماقبل مضموم او مكسور دې .

**دريم شرط :** دادې چه حالت دوقف وي احترازي مثال حَكِيْمًاالَّذِيْ داحالت دوقف نه دې اتفاقي مثال حَكِيْماً حَكِيْماً وئيل كثير دي او حَكِيْمْ وئيل قليل دي .

**دويم حكم :** دادې چه نون دتنوين په حرف علت سره بدلول قليل دي اوساقطول كثيردي .

**اول شرط :** دادې چه نون تنوين واو احترازي مثال ضَارِبَانِ داتثنيه ده .

**دويم شرط :** دادې چه دنون تنوين ماقبل مضموم وي يامكسور وي احترازي مثال حَكِيْماً .

**دريم شرط :** دادې چه حالت دوقف وي احترازي مثال قَدِيْرُنِ الَّذِيْ داحالت دوقف نه دې اتفاق مثال غَفُوْرٌ إِلى حِيْنٍ غَفُوْرُوْ إِلى حِيْنِيْ وئيل قليل او غَفُوْرْ إِلى حِيْنْ وئيل كثيردي .

**۱۱- قانون : هر نون خفيفه ما قبل او مضموم يا مكسور باشد درحالت وقف بيفتد ومحذوف باز آيد وجوبا وگرنه بالف مبدل شود :**

ددې قانون نوم دې دنون خفيفه قانون دې لپاره دوه حكمه دي هرحكم لپاره دوه شرطونه دي

---

(۱) كه چيرته دكلمې په آخر كې تاء تانيث خالص اسمه زائده وي نو په حالت دوقف كې دا په ها سره بدلول واجب دي لكه : رَحْمَةٌ . مُسْلِمَه وئيل واجب دي . نوادرفيوض . صرف بهتوال انجاد .

**اول حکم :** دادې چې نون خفیفه به ساقط شي اوکوم حرف چه حذف شوې وي دهغه واپس راوړل به واجب وي :

**اول شرط :** دنون خفیفه ماقبل به مضموم وي یامکسور وي احترازي مثال اِضْرِبَنْ دلته مفتوح دې .

**دویم شرط :** دادې چې حالت دوقف وي احترازي مثال اِضْرِبُنْ بَکْراً اِضْرِبِنْ بَکْراً دلته وقف د بَکْراً په را دې اتفاقي مثال اِضْرِبُنْ اِضْرِبِنْ نون خفیفه به حذف شي اومحذوف (۱) شده حرف به واپس راشي اِضْرِبُوْ اِضْرِبِيْ وئیل واجب دي .

**دویم حکم :** دادې چې نون خفیفه الف سره بدلول جایز دي :

**اول شرط:** دادې چې دنون خفیفه ماقبل مفتوح وي احترازي مثال اِضْرِبُنْ دلته مفتوح نه دي .

**دویم شرط :** دادې چه حالت دوقف وي . احترازي مثال اِضْرِبَنِ الْقَوْمَ . اتفاقي مثال د اِضْرِبَنْ نه اِضْرِبَاْ وئیل د اِذاً نه اِذاً وئیل . نون خفیفه چې ماقبل ئې مفتوح وي په الف سره بدلول غیرفصیح دي مصنف ارشاد دمبتدي رعایت ساتلې او په غیر فصیح لغت ئې اکتفا کړې ده .

**والله اعلم باالصواب .**

## ۱۲- قانون : هرنون اعرابي وقت دخول جوازم ونواصب ولحوق نون ثقیله ونون خفیفه وبنا کردن امر حاضر معلوم حذف کرده شود وجوبا .

ددې قانون نوم دې دنون (۲) اعرابي قانون نون اعرابي هغه دې چې دفعل مضارع په آخرکې دضمه په عوض کې راشي . دې لپاره یوحکم دې او پنځه شرطونه دي کامل .

**حکم :** یې دادې چې نون اعرابي حذف کول واجب دي .

---

(۱) نون خفیفه دضمې اوکسرې نه بعدپه حالت دوقف کې ساقطیږي اوحرف ساکن (واو،یا) چې کوم داجتماع ساکنین له وجې حذف شوي وو دحذف دعلت دزائل کیدو په وجه به دوباره راشي په دې وخت کې اګرچه دموقوف علیه او غیرموقوف علیه په مینځ کې به التباس راځي خوپه قرینې سره به زائلیږي . بهتراال . نوادر . فیوض . انجاد.

(۲) دفعل مضارع په څوارلس صیغو کې چې په کوم کې نون اعرابي راځي هغه دادې : ۱- تثنیه مذکرغائبین .۲- جمع مذکرغائبین .۳- تثنیه مؤنث غائبین ۴- تثنیه مذکر مخاطبین .۵- جمع مذکر مخاطبین .٦- واحده مؤنثه مخاطبه . ۷- تثنیه مؤنث مخاطبتین . فائده : فعل مضارع کې دنون زائده درې قسمه دي : ۱- نون اعرابي چې صرف په اوه صیغو کې وي . ۲- نون ضمیري چې صرف په دوه صیغو کې وي . جمع مؤنث غائبات . جمع مؤنث مخاطبات . ۳- نون تاکیدي چې دټولوصیغوپه آخرکې پیوسته کیږي .

**اول شرط** : دادې چې په کومه کلمه کې نون اعرابي وي په هغې به دحروف جوازم نه یوحرف داخل وي . احترازي مثالي : يَضْرِبَانِ . يَضْرِبُوْنَ . اتفاقي مثال : لَمْ يَضْرِبَا . لَمْ يَضْرِبُوْا .

**دويم شرط** : دادې چې په کومه کلمه کې نون اعرابي وي په هغې باندې دحروف نواصب نه یوحرف داخل وي . احترازي مثال : يَضْرِبَانِ . يَضْرِبُوْنَ . اتفاقي مثال : لَنْ يَّضْرِبَا . لَنْ يَّضْرِبُوْا .

**دريم شرط** : دادې چې په کومه کلمه کې چې نون اعرابي وي دهغې په اخر کې به نون ثقيله (۱) پیوسته وي . احترازي مثال : يَضْرِبَانِ . يَضْرِبُوْنَ . اتفاقي مثال : لَيَضْرِبَنَّ . لَتَضْرِبُنَّ .

**څلورم شرط** : دادې چې په کومه کلمه کې نون اعرابي وي دهغې نه امر حاضر جوړشي ، احترازي مثال : تَضْرِبَانِ . تَضْرِبُوْنَ . اتفاقي مثال : اِضْرِبَا . اِضْرِبُوْا .

## ۱۳ - قانون : هونون ساکن وتنوین را درحرف یرملون ادغام مي کنند وجوباً ونون متحرک راجوازاً بشرطیکه دریک کلمه نباشد درحروف یمون بغنّه ودر بغیر غنّه :

ددې قانون نوم دې د يَرْمَلُوْن قانون : دې لپاره دوه حکمونه دي : هر حکم لپاره دوه شرطونه دي (د يرملون حروف شپږ دي : ي ، ر ، م ، ل ، و ، ن ) .

**اول حکم** : دادې چې نون ساکن اوتنوین دمابعد جنس سره بدلول اوجنس په جنس کې مدغم کول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې دنون ساکن اوتنوین نه پس دحرفو يَرملون نه یو حرف وي . احترازي مثال مِنْ شَرٍّ زَيْدٌ شَاهِدٌ دلته دنون نه پس شین دې .

**دويم شرط** : دادې چې تنوین او نون ساکن او دېنه بعد چې کوم حروف يرملون دي په جُدا جُدا کلمو کې دي ، احترازي مثال بُنْيَانٌ . قِنْوَانٌ اتفاقي مثال لَنْ يَضْرِبَ نه لَنْ يَّضْرِبَ وئیل ، دَافِقٍ يَخْرُجُ نه دَافِقٍ يَّخْرُجُ باقي امثله په حاشیه باندې وګورئ (۲)

(۱) کله چې نون تاکید دمضارع په اخر کې پیوسته شي ، نو نون اعرابي او واو دالتقاء ساکنین په وجه ساقطیږي . په دې وخت کې په ابتداء کې اکثر لام مفتوحه راوړل کیږي .

(۲) امثله لره بغیر دغنه نه : مِنْ لَّدُنَّا . مِنْ رَّبِّهِمْ . ظُلُمٰتٍ لَّا . رَجُلٌ رَّشِيْدٌ . امثله يمون : مِنْ مَّاءٍ . مِنْ وَّرَائِهِمْ مِنْ نَّارٍ . خَيْرًا يَّرَهٗ . صَلٰوةٌ وَّلَكُمْ . رَسُوْلًا نَّاصِرٌ .

**دويم حكم :** دادې چې نون متحركه دمابعد دجنس نه كول جائز دي او بيا جنس په جنس كې مدغم كول دا هم جائز دي په قانون دمتجانسين .

**اول شرط :** دادې چې دنون متحركه نه پس دحروف يرملون نه يو حرف وي احترازي مثال : الَّذِينَ جَاهَدُواْ . دلته دنون نه بعد جيم دې .

**دويم شرط :** دادې چې نون متحركه او ددېنه بعد حروف يرملون په جُدا جدا كلمو كې وي ، احترازي مثال قُنِيَ، اتفاقي مثال : آمَنَ يَزِيْدُ نه آمَنَ يَزِيْدُ . آمَنَ رَفِيْقٌ . آمَنَ مُحَمَّدٌ . آمَنَ لَبِيْدٌ . آمَنَ وَلِيْدٌ . آمَنَ نَصِيْرٌ .

## ۱۴- قانون : هر نوع ساكن وتنوين كه واقع شود قبل با مطلقاً رابميم بدل كنند وجوباً وقبل از حروفِ حلقيه ظاهرخوانده مي شوند وجوباً وقبل از الف نمي آيند ودرباقي حرف اخفاكرده آيند :

ددې قانون نوم دې : داقلاب ، اظهار او اخفاء (۱) قانون ددې درې حكمونه دي هريوحكم لپاره يويو شرط دې :

**اول حكم :** دادې چې نون ساكن او نون تنوين په ميم سره بدلول واجب دي .

**شرط :** يې دادې چې دنون ساكن اونون تنوين نه پس حرف باوي احترازي مثال مِنْ رَبِّهِمْ ، غَفُوْرٌ رَحِيْم . دلته حرف (را) ده . اتفاقي مثال ديوې كلمې ينبغي ددوه كلمو مِنْ بَعْدُ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ .

**دويم حكم :** دادې چې نون ساكن اونون تنوين ظاهر وئيل واجب دي :

**شرط :** يې دادې چې دنون ساكن اونون تنوين نه بعد دحروف (۲) حلقيه نه يو حرف راغلې وي

(۱) حرف اخفاء . تاء . ثا . جيم . دال . ذال . زا . سين . شين . صاد . ضاد . طا . ظا . فا وكاف وقاف بين . تا : كُنْتُمْ كُلُّ اَمْرٍ كُنْ قَى . ثا : مَنْ ثَقُلَتْ . مَتَاعٌ لَكُمْ أَمِيْنٍ . جيم : مَنْ جَاءَكَ . فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ . دال : مِنْ دَالِقٍ . هَذَا هَا دُوْنَ . ذال : مِنْ ذَاكِرٍ . جَوَازًا ذَاكِرٌ . زاء : مِنْ زَاجِرٍ . هُجَاجٌ . سين : من ساكن . أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا . شين . مِنْ شَاكِرٍ . سَبْعٌ شِدَادٌ . صاد . مِنْ صَابِرٍ . قَوْمًا . صَابِرِيْنَ . ضاد : مِنْ ضَاحِلٍ . قَوْمٌ ضُعَفَاءُ . طا : مِنْ طَاهِرٍ . لَمْ مَلَكًا طُوْنَ . ظا : مِنْ ظَاهِرٍ . أَمِنًا ظَالِمٌ . فا : مِنْ فَاتِحٍ . رَجُلٌ فَقِيْرٌ . كاف : مِنْ كَرِيْمٍ . رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ . قاف : مِنْ قَاهِرٍ . رَجُلٌ قَسِيْمٌ .

(۲) حروف حلق شش بوداى نور عين . همزه ها وحاعين وغين . امثله نون تنيون قبل حرفو حلق : زَيْدٌ أَمِيْرًا . زَيْدٌ هَالِكٌ . زَيْدٌ حَاكِمٌ . زَيْدٌ خَادِمٌ . زَيْدٌ عَالِمٌ . زَيْدٌ غَالِبٌ . امثله نون . ساكن قبل حروف حلقي . مِنْ غَالِبٍ . مِنْ عَالِمٍ . مِنْ خَادِمٍ . مِنْ حَاكِمٍ . مِنْ هَالِكٍ . مِنْ أَمِيْرٍ .

احترازي مثال : مِنۡ بَعۡدُ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ، دلته دحرف بانه مخکې دې اتفاقي مثال مِنۡ حَاكِمٍ . أَنۡعَمۡتَ . عَلِيۡمٌ ، حَكِيۡمٌ .

**دريم حکم :** دادې چې نون ساکن او نون تنوين اخفا سره وئيل واجب دي

**شرط :** يې دادې چې دنون ساکن او نون تنوين نه بعد دحروف اخفاء نه يو حرف وي . احترازي مثال : مِنۡ حَمۡدٍ . عَلِيۡمٌ ، حَكِيۡمٌ . دلته دحرف حا نه مخکې دې اتفاقي مثال : مَنۡ ثَقُلَتۡ . كُنۡتُمۡ زيدٌ كَرِيۡمٌ .

**۱۵- قانون : هر امر حاضر معلوم را از فعل مضارع معلوم مخاطب باين طور بنامي كنند كه اگر بعد ازحذف كردن حرف مضارع مابعدش ساكن مانده همزه وصلي مضموم دراولش در آورند وجوباً بشرطيكه مضارع او نيز مضموم العين باشدوگرنه همزه مكسوره واگرمابعدش متحرك ماندامرهمون شد بوقف آخر :**

ددې قانون نوم دې دامر حاضر معلوم قانون . اولو دوو حکمونولپاره دوه دوه شرطونه دي او دريم حکم لپاره يو شرط دې .

**اول حکم :** دادې چې دتا حرف مضارعت په ځاې همزه وصليه مضموم راوړل او آخرکې وقف کول واجب دي .

**اول شرط :** يې دادې چې دتاحرف مضارعت نه بعد حرف ساکن وي احترازي مثال : تُصَرِّفُ دلته متحرك دې

**دويم شرط :** دادې چې مضارع معلوم مضموم العين وي احترازي مثال تِضۡرِبُ دلته مضموم نه دې، اتفاقي مثال تَنۡصُرُ نه اُنۡصُرۡ وئيل .

**دويم حکم :** دادې چې دتاحرف مضارعت په ځاې همزه وصليه مکسوره راوړل او اخر کې وقف کول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې دتا حرف مضارعت نه بعد حرف ساکن وي، احترازي مثال تُصَرِّفُ دلته متحرک دې

**دويم شرط :** دادې چې مضارع مضموم العين نه وي احترازي مثال تَنۡصَرِفُ اتفاقي مثال دمکسورالعين تَضۡرِبُ نه اِضۡرِبۡ دمفتوح العين مثال تَعۡلَمُ نه اِعۡلَمۡ .

**دريم حکم :** دادې چې تا حرف مضارعت به حذف شي او آخر کې وقف کول واجب دي

**شرط** : يې دادې چې تاحرف مضارعت نه پس حرف متحرك وي احترازي مثال تَضْرِبُ تَنْصُرُ اتفاقي مقال تُضَارِبُ تُصَرِّفُ نه ضَارِبْ ، صَرِّفْ .

**فائده** : امر حاضر معلوم همیشه دفعل مضارع معلوم نه جوړیږي او هغه داسې چې که چرته په فعل مضارع کې په يو قانون وجوبي سره تعليل شوې وي نو دتعليل نه پس چې کوم صورت پاتې شي دهغې نه به امر حاضر معلوم جوړيږي لکه تَعِدُ په اصل کې تُوْعِدُ وۀ فا کلمه وجوبي قانون سره حذف شوې ده، دريم حکم به په کې جاري کړو امربه ترېنه عِدْ وايو که چرته په فعل مضارع کې په خلافِ قانون يا جوازي قانون سره تعليل شوې وي نو دتعليل نه ماقبل والاصورت نه به امر جوړ وۀ لکه تُكْرِمُ په اصل کې تُأَكْرِمُ وۀ همزه خلاف قانون حذف ده اُوس به ددې داصل تُأَكْرِمُ نه امر أَكْرِمْ وايو چې په جوازي قانون سره تعليل شوې وي دهغې مثال : تَأْجَلُ اصل کې تَوْجَلُ امر په اِوْجَلْ وايو .

## ۱۶- قانون : چون نون ثقيله بانون ضميري متصل شود الف فاصله ميانِ ایشان درآرند وجوباً :

ددې قانون نوم دې دالف فاصله قانون : دې لپاره يوحکم دې او يوشرط دې .

**حکم** : دادې چې دنون ضميري اونون تاکيد په مابين کې الف دفاصلې راوړل واجب دي

**شرط** : يې دادې چې نون ضميري دنون تاکيد (۱) سره متصل وي احترازي مثال : لَيَكُوْنَنَّ دلته نون تاکيد داصلي سره متصل دې اتفاقي مثال : اِضْرِبْنَنَّ نه اِضْرِبْنَانِّ بيا فتحه دنون به په کسرې سره بدله کړو ( دمشابهت دنون تثنيې دوجې ) نو اِضْرِبْنَانِّ به شي .

## ۱۷- قانون : ظرف صحيح مهموز اجوف كه مضارع او بروزن يَفْعِلُ ومثال مطلقا بروزن مَفْعِلٌ مي آيد وصحيح مهموز اجوف كه مَفْعَلٌ مي آيد وماسوايې ایشان شاذ است وازغير ثلاثي مجرد بروزن اسم مفعول آن باب مي آيد وجوباً :

(۱) نون تاکيد ثقيلة وخفيفه دواړه غير عامله دي دتاکيد دفعل لپاره دي مضارع منفي په لا او ما سره قليل راځلې ده لکه مَايَضْرِبَنَّ لَايَضْرِبَنَّ او جحد کې خو بيره قليل راځلې ده لکه لَمْ يَعْلَمَنَّ . ام او نهي کې استعمال کثير دې . او اسم کې کله کله دضرورت شعري له وجې راځي .

ددې قانون نوم دې دظرف قانون : دې لپاره درې حکمه دي اول دوه حکمونه لپاره دوه دوه شرطونه دي کامل . دریم حکم لپاره یوشرط دې :

**نوټ :** اول دوه حکمونه صرف دثلاثي مجرد دبابونو لپاره دي .

**اول حکم :** دادې چې اسم ظرف دمفعل په وزن وئیل واجب دي :

**اول شرط :** یې دادې چې په هفت اقسامو کې باب دصحیح ، مهموز ، اجوف، مضارع د يَفْعِلُ په وزن وي احترازي مثال نَصَرَ، يَنْصُرُ اتفاقي مثال دصحیح د ضَرَبَ يَضْرِبُ نه مَضْرِبٌ په وزن دمَفْعِلٌ وئیل واجب دي . دمهموزمثال اَدَّ دیَأْدُدُ نه مَأْدِدٌ وئیل . داجوف طَوَحَ يَطْوَحُ نه مَطْوِحٌ .

**دویم شرط:** دادې چې په هفت اقسام کې دباب دمثال نه وي مطلقاً (۱) . احترازي مثال ضَرَبَ يَضْرِبُ دا باب مثال نه دې اتفاقي مثال : وَعَدَ يَعِدُ نه مَوْعِدٌ يَسَرَ يَيْسَرَ نه مَيْسَرَ .

**دویم حکم :** دادې چې اسم ظرف د مَفْعَلٌ په وزن وئیل واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې په هفت اقسامو کې باب دصحیح، مهموز، اجوف، مضارع، دیَفْعِلُ په وزن نه وي احترازي مثال ضَرَبَ يَضْرِبُ . اتفاقي مثال دصحیح نَصَرَ يَنْصُرُ نه مَنْصَرٌ، مهموز اَمَرَ يَأْمُرُ نه مَأْمَرٌ قَالَ يَقُوْلُ نه مَقْوَلٌ .

**دویم شرط :** دادې چې په هفت اقسامو کې باب دلفیف ناقص او مضاعف نه وي مطلقاً (۲)

احترازي مثال : نَصَرَ يَنْصُرُ اتفاقي مثال : دناقص نه دَعَا يَدْعُوْا نه مَدْعىً اصل کې مَدْعَيٌ وو . لفیف د وَقَى يَقِيْ نه مَوْقىً اصل کې مَوْقَيٌ وُو مضاعف د مَدَّ يَمِدُّ نه مَمَدٌّ اصل کې مَمْدَدٌ وو .

**دریم حکم :** دادې چې اسم ظرف هم ددغه باب داسم مفعول په وزن باندې وئیل واجب دي .

**شرط :** یې دادې چې شش اقسامو کې دثلاثي مجرد باب نه وي احترازي مثال ضَرَبَ يَضْرِبُ دا ثلاثي مجرد دې اتفاقي مثال دثلاثي مزید يُضَارِبُ نه مُضَارِبٌ او درباعي مجرد يُدَحْرِجُ نه مُدَحْرَجٌ

---

(۱) دمطلقاً مطلب دادې چې مثال واوي که یائي مضارع مکسور العین وي او که مفتوح العین او مضموم العین وي پدې نسبت سره دااتفاق تول شپږمثالونه جوړیږي لکه : يَوْجِدُ نه مَوْجِدٌ يَوْجِلُ نه مَوْجِلٌ يَوْسِمُ نه مَوْسِمٌ يَيْسِرُ نه مَيْسِرٌ يَيْنَعُ نه مَيْنِعٌ يَيْمَنُ نه مَيْمَنٌ .

(۲) دمطلقاً مطلب دادې چې ناقص واوي وي او که یائي وي په هردریو صورتونو دعین کلمه دمضارع لفیف هم که مفروق وي او که مقرون وي په هر درې حرکاتو دعین کلمه دمضارع . مضاعف ثلاثي سره دحرکاتو ثلاثة دعین کلمې دمضارع . مثالونه په خپل سوچ او فکر سره وباسئ .

**فائده** :مکه چرته دثلاثي مجرد ظرف دمذکور قانون خلاف راشي نو دهغه شاذ وايي دشاذ دري اقسام دي : ۱- موافق قانون مخالف استعمال لکه . سَجَدَ يَسْجُدُ نه مَسْجَدٌ ۲- شاذ موافق استعمال مخالف قانون لکه : سَجَدَ يَسْجُدُ نه مَسْجِدٌ .۳- شاذ مخالفِ استعمال وقانون لکه سَجَدَ يَسْجُدُ نه مَسْجُدٌ دا قبيح دي .

## ۱۸- قانون : هر الف که حرکت ماقبلش مخالف شو آن رابوفق حرکتِ ماقبل بحرف علت بدل کنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې دضُوْرِبَ او مَضَارِيْبُ قانون : دې لپاره يوحکم دې او دوه يې شرطونه دي :

**حکم** : يې دادې چې الف هغه حرف علت سره بدلول واجب دي چې دماقبل حرف دحرکت سره موافق وي :

**اول شرط** : دادې چې الف وي احترازي مثال : قَوْلٌ بِيَعٌ دلته الف نشته .

**دويم شرط**: دادې چې ماقبل حرکت دده سره مخالف وي احترازي مثال : قَالَ وَبَاعَ دلته موافق دي اتفاقي مثال د ضَارَبَ نه ضُوْرِبَ (۱) د مِضْرَابٌ نه مَضَارِيْبُ (۲) او مُضَيْرِيْبُ .

## ۱۹- قانون : هر الف مقصوره سيوم جا بدل از واو يا اصلي که اماله کرده نشود وقت بنا کردن تثنيه وجمع مؤنث سالم آن رابواو مفتوحه بدل کنند وجوباً وغيراينها رابيا وممدوده اصلي را ثابت گزارند وتانيثي را بواو بدل کنند وجوباً ودرغير ايشان هر دووجه خواندن جائز است :

ددې قانون نون دې الف مقصوره او الف ممدوده قانون : ددې دوينا نه وړاندې يوڅو فوائد پيژندل ضروري دي ۱- فائده : هغه الف چې داسم په آخر کې راشي په دوه قسمه دي .

۱- مقصوره ۲- ممدوده .

**مقصوره** : هغه الف دې چې مابعدترېنه همزه نه وي برابره خبره ده که اصلي وي اوکه زائد وي لکه عَصَى حُبْلى

---

(۱) ضارب کله چې دې نه ماضي مجهول جوړوو نو اول حرف ته به ضمه ورکړو اوس دالف ماقبل حرکت دالف نه مخالف شو نو دا الف به موافق دحرکت دماقبل يعنې واو سره بدل کړو ماقبل آخر ته به کسره ورکړو ضورب به جوړ شي .

(۲) مضراب کله چې ددې جمع اقصی او تصغير جوړوو نو دالف ماقبل حرکت دده مخالف شو نو دا الف به موافق دحرکت دماقبل يعنې يا سره بدل کړو مضاريب مضيريب به جوړ شي . فائده : حمراء کې اصل کې دوه الفه دي يو دتانيث بل دمده الصوت چونکه دويم الف دالف زائده نه په طرف کې واقع دې ددغه په قانون سره دا الف په همزه بدل شو .

**ممدوده** : هغه الف دي چې مابعدترېنه همزه وي برابره خبره ده كه اصلي وي اوكه زائدوي، لكه قُرَّاءُ . حَمْرَاءُ .

الف ممدوده په درې (۳) قسمه دي : ۱- تانيثي لكه حَمراء . ۲- اصلي يعنې په مقابله دلام كلمه كې وي غير مبدل وي لكه قُرَّاءُ . حَمْرَاءُ . ۳- غير اصلي لكه عِلْبَاءُ ضَرْبَاءُ غِلْبَاءُ كې الف ممدوده دزوائدالحاق څخه دي دقِرْطَاسُ هموزن كيدلو په خاطر مو الف زائد كړې دي ، دې لپاره پنځه حكمونه دي دوه حكمونه دالف مقصوره لپاره او درې حكمونه د الف ممدوه لپاره دي :

**اول حكم** : دادې چې الف مقصوره به تثنيه او جمع مؤنث سالم جوړولو په وخت كې په واو مفتوحه سره بدلول واجب دي . ددې لپاره دشرطونو دوه جماعته دي او هر جماعت لپاره دوه دوه شرطونه دي .

**داولني جماعت اولنې شرط** : الف مقصوره به په دريم ځاې كې وي احترازي مثال : ضُرْبِي دلته الف مقصوره په څلورم ځاې كې دې .

**دويم شرط** : الف مقصوره دواو بدل وي . احترازي مثال رَحًى اصل كې رَحَيٌ وو الف دياء نه بدل دي . اتفاقي مثال د عَصًا نه عَصَيَانِ عَصَوَاتٌ .

**ددويم جماعت اولنې شرط** : الف مقصوره اصلي وي . احترازي مثال عَصًى الف مقصوره دواو نه بدل دې . رَحًى . دا بدل ديا نه دې .

**دويم شرط** : داسې الف مقصوره چې اماله (۱) پكې ونه شي احترازي مثال بَلٰى دلته اماله كيږي اتفاقي مثال اِلٰى كله چې دچا لپاره نوم شي نه اِلَوَانِ اِلَوَاتٌ .

**دويم حكم** : دادې چې الف مقصوره به دتثنيه او جمع مؤنث سالم جوړولو په وخت كې په ياسره بدلول واجب دي .

---

(۱) اماله دېته وايي چې الف لره ديابوئ چې نه مكمل ياداء شي بلكه مينځ مينځ كې وي او فتح چې ماقبل ته بوي دكسرې وركړې ونيال چې نه مكلم فتحه وګيلې شي . نه مكمل كسره ددې قسمه اما كولو لپاره به دقاريانو صاحبانو څخه سيده كول ضروري وي . دا مبنيات په دې شپږ كلماتو كې اماله كيداې شي چې كله دچا لپاره نومونه شي . متى . انى . ذا . دا درې اسمونه دي . بلى يا . لا . دا درې حروف دي .

**شرط**: يې دادې چې داول حكم ددواړوجماعتونو شرطونه پكې ونه موندل شي احترازي مثال عَصًا، إِلَى، اتفاقي مثال ضُرْبَيَانِ ضُرْبَيَاتٌ، مُصْطَفَيَانِ، مُصْطَفَيَاتٌ، مُسْتَدْعَيَانِ و مُسْتَدْعَيَاتٌ كله چې دچا لپاره عَلَمْ وي .

**دريم حكم**: دادې چې الف ممدوه به دتثنيه او جمع مؤنث جوړولو په وخت كې ثابت ساتل واجب وي .

**اول شرط**: دادې چې الف ممدوده اصلي وي يعنې په مقابله دلام كلمه كې وي اودچانه بدل هم نه وي احترازي مثال حَمْرَاءُ دا تانيثي دې اتفاقي مثال د قراء نه قُرَّاءَانِ ، قُرَّاآتٌ .

**څلورم حكم**: دادې چې الف ممدوده دتثنيه او جمع جوړولو په وخت كې په واو مفتوحه سره بدلول واجب دي .

**شرط**: يې دادې چې الف ممدوده تانيثي وي احترازي مثال قُرَّاءُ دا اصلي دې اتفاقي مثال د حَمْرَاءُ نه حَمْرَاوَانِ حَمْرَاوَاتٌ .

**پنځم حكم**: دادې چې الف ممدوده دتثنيه او جمع مؤنث سالم جوړولوپه وخت كې په دوه طريقو سره وئيل جائز دي يعنې ثابت يې ساتي او كه په واو مفتوحه سره يې بدلوي .

**شرط**: يې دادې چې دماقبل حكمونو شرطونه پكې موجود نشي يعنې اصل او تانيثي نه وي، احترازي مثال قُرَّاءُ حَمْرَاءُ اتفاقي مثال برايى الحاق عِلْبَاءٌ نه عِلْبَاآنِ عِلْبَاآتٌ ياعِلْبَاوَانِ عِلْبَاوَاتٌ . لپاره دبدل دواو نه كِسَاءٌ چې په اصل كې كِسَاوٌ وؤ . ده نه كِسَاآنِ كِسَاآتٌ كِسَاوَانِ كِسَاوَاتٌ . لپاره دبدل ديانه . رِدَاءٌ چې اصل كې رِدَايٌ وؤ ده نه رِدَاءَانِ رِدَاءَاتٌ يا رِدَاوَانِ رِدَاوَاتٌ .

**۲۰- قانون هر كلمه حلقي العين كه بروزن فعل باشد سوائى اصل درآن سه وجه خواندن جائزاست چناچه درشَهِدَ شَهْدَ شِهِدَ ودر فَخِذٌ فَخْذٌ فِخِذٌ جائزاست واگرحلقي العين نباشد در فعل سوائى اصل يک وجه ودراسم سوائى اصل دو وجه خواندن جائز است چنانچه در عَلِمَ عَلْمَ ودر كَتِفٌ كَتْفٌ كِتْفٌ جائز است ودروزن فَعُلٌ فَعْلٌ ودر فِعِلٌ فِعْلٌ ودر فُعُلٌ فُعْلٌ ودر فُعُلٌ فُعْلٌ خواندن جائز است :**

ددې قانون نوم دې دحلقي العين قانون . دې لپاره درې حكمونه دي او د اولنو دوو حكمونو لپاره دوه دوه شرطونه دي اودريم حكم لپاره يوشرط دي

**اول حکم :** دادې چې دوزن اصلي نه ماسوی درې وجې وئیل جائز وي .

**اول شرط :** يې دادې چې حلقي العين وي يعنې عين کلمه کې به حرف حلقي وي احترازي مثال عَلِمَ دا حلق العين نه دې .

**دويم شرط :** کلمه په وزن دفعل وي احترازي مثال سَئَلَ دا وزن د فَعِلَ نه دې اتفاقي مثال د شَهِدَ نه شَهْدَ شِهْدَ شِهِد وئيل د فَخِذٌ فَخْذٌ فِخْذٌ فِخِذٌ وئيل .

**فائده :** چې دفعل صورت حقيقةً وي اوکه حکماً وي .

**حقيقة :** هغه کلمه چې درې حروف په کې وي او په وزن د فعل وي لکه شَهِدَ او فَخِذٌ .

**حکماً :** هغه کلمه چې دهغې بعضې حروف دابتداء او انتهاء لحاظ وساتل شي او وزن د فَعِلَ ترينه جوړ شي ابتداء لکه وَهِيَ نه وَهْيَ انتها لکه يَشْتَهِرُ ، مُشْتَهِرُ نه مُشْتَهِرٌ الخ .

**دويم حکم :** دادې چې فعل کې ماسوايي داصل دوزن نه يو وجه وئيل جايز دي او اسم کې ماسوی داصل نه دوه وجې وئيل جائز دي .

**اول شرط:** يې دادې چې کلمه حلقي العين نه وي احترازي مثال : شَهِدَ دا حلقي العين دې .

**دويم شرط:** يې دادې چې فَعِلَ صورت وي (۱) که حقيقة وي اوکه حکماً وي احترازي مثال ضَرَبَ دادفعل صورت نه دې اتفاقي مثال دحقيقة چې فَعِلَ وي عَلِمَ نه عَلْمَ وئيل يَكْتَسِبُ نه يَكْتَسْبُ . حقيقةً چې اسم وي کَتِفٌ نه کَتْفٌ کِتْفٌ . مَکْتَسِبٌ مُکْتَسْبٌ مُکْتِسْبٌ .

**دريم حکم :** دادې چې ماسوی داصل نه يوه وجه وئيل جائز دي .

**شرط:** يې دادې چې په دې څلور اوزانو کې يو وزن وي هريوچې وي احترازي مثال فَخِذٌ اتفاقي مثال ۱- د فُعُلٌ نه فُعْلٌ لکه عَضُدٌ نه عَضْدٌ . ۲- د فِعِلٌ نه فِعْلٌ لکه اِبِلٌ نه اِبْلٌ ۳- د فُعُلٌ نه فُعْلٌ لکه عُنُقٌ نه عُنْقٌ . ۴- د فُعُلٌ نه فُعْلٌ لکه قُفُلٌ قُفْلٌ .

---

(۱) فائده : لام امر بعدې چې کله واو فا . ثم . داخل شي نو هلته صورت دفعل پيدا کيږي دې وجې نه لام ساکن وئيلې شي لکه : وَلْيَحْكُمْ . فَلْيَحْكُمْ ثُمَّ لْيَحْكُمْ

## ۲۱- قانون هر بابیکه ماضي او مکسور العین ومضارع او مفتوح العین باشد یا دراول ماضي او همزه وصلي یا تائی زائده مطرده باشد در مضارع معلوم او غیر اهل حجاز حرفِ اتین رابغیریایی حرکت کسره می دهند جوازاً ودر اَبی یَاَبی یایی رانیز :

ددې قانون نوم دی دِاِعْلَمُ تِعْلَمُ نِعْلَمُ قانون : ددې لپاره یوحکم دې اودرې شرطونه دي کامل **حکم** : یې دادې چې په مضارع معلوم کې دحروف اتین نه ماسوی دیانه (غیر اهل حجاز په نزد) کسره ورکول جائز دي .

**اول شرط** : یې دادې چې داسې باب وي چې ماضي یې مکسور العین وي . مضارع یې مفتوح العین وي احترازي مثال : ضَرَبَ یَضْرِبُ . دلته ماضي مفتوح العین ده او مضارع مکسور العین ده . اتفاقي مثال عَلِمَ یَعْلَمُ . تَعْلَمُ نه تِعْلَمُ اَعْلَمُ نه اِعْلَمُ او نَعْلَمُ نِعْلَمُ .

**دویم شرط** : دادې چې باب وي چې ابتداء کې همزه وصلیه وي احترازي مثال اکرم دلته همزه قطعي ده اتفاقي مثال اِکْتَسَبَ تَکْتَسِبُ نه تِکْتَسِبُ . اَکْتَسِبُ نه اِکْتَسُبُ . نَکْتَسِبُ نه نِکْتَسِبُ .

**دریم شرط** : دادې چې داسې باب وي چې دماضي په ابتداء کې تایی زائده مطرده (۱) وي احترازي مثال صَرَّفَ دلته تایی زائده نشته اتفاقي مثال : تَصَرَّفَ تَتَصَرَّفُ نه تِتَصَرَّفُ . اَتَصَرَّفُ نه اِتَصَرَّفُ نَتَصَرَّفُ نه نِتَصَرَّفُ .

## ۲۲- قانون : هر حرف علت که واقع شود بعد از الف مَفَاعِلُ آن را به همزه بدل مي کنند وجوباً زائده رامطلقاً واصلي رابشرط تقدم حرف علت بر الف مَفَاعِلُ :

ددې قانون نوم دي د شَرَائِفُ قانون دې لپاره یو حکم دې که حرف علت اصلي وي نو دې لپاره درې شرطونه دي او که حرف علت زائد وي نو دې لپاره دوه شرطونه دي . ددې وئیلو نه مخکې یو فائده پیژندل ضروري ده .

**فائده** : وزن په درې قسمه دې .۱- صرفي .۲- صوري . ۳- عروضي .

---

(۱) تایی زائده مطرده هغه ده چه دمجرد نه دمزید باب جوړیدو په وخت کې قیاساً په اول کې راوړل شي داسې ابواب درې دي : ۱ تَفَعُّل .۲ تَفَاعُل . ۳ تَفَعْلُل

**صرفي :** هغه دې چې په هغې کې دتعداد دحروفو دحرکاتواو سکناتو داصل او زائد اعتبار وي يعنې حروف اصليه دحروف اصليه مقابله کې زائد دزائد په مقابله کې حرکت دحرکت په مقابله او ساکن دساکن په مقابله کې لکه : **شَرَائِفُ** بروزن **فَعَائِلُ** .

**صوري :** هغه دې چې دتعداد دحروفو دحرکاتو اوسکنات اعتبار په کې وي داصل او زائد په کې اعتبار نه وي لکه : **شَرَائِفُ** په وزن د **مَفَاعِلُ** .

**عروضي :** هغه دې چې په کې دتعداد حروف اعتبار وي ساکن دساکن په مقابل وي متحرك دمتحرك مقابل وي ليکن بعينه هغه حرکت نه وي کوم چې په موزون کې وي لکه **شِرِيْفٌ** په وزن د **فُعُوْلٌ** په موزون کې په اول حرف باندې فتحه ده او په وزن کې ضمه ده .

**حکم :** يې دادې چې حرف علت په همزه سره بدلول واجب دي .

**اول شرط دحرف علت زائد:** دادې چې حرف علت دالف نه پس وي احترازي مثال **قَوْلٌ بَيْعٌ** دلته دالف نه پس نه دي .

**دويم شرط :** دادې چې دالف **مَفَاعِلُ** نه بعد وي احترازي مثال **اَوَاعِدُ** ، **اَيَاسِرُ** دلته حرف علت دالف مفاعل نه قبل دې اتفاقي مثال **شَرَايِفُ عَجَاوِزُ**، **رَسَاالُ**، نه **شَرَائِفُ عَجَائِزُ** او **رَسَائِلُ** وئيل .

**اول شرط دحرف علت اصليه :** دادې چې الف نه پس وي احترازي مثال **قَوْلٌ بَيْعٌ** .

**دويم شرط :** دادې چې دالف د **مَفَاعِلُ** نه پس وي احترازي مثال **اَوَاعِدُ** ، **اَيَاسِرُ** .

**دريم شرط :** دادې چې الف د **مَفَاعِلُ** نه مخکې به هم حرف علت وي (۱) احترازي مثال **مَقَاوِلُ مَبَايِعُ** دلته دالف د **مَفَاعِلُ** نه قبل حرف علت نشته اتفاقي مثال د **قَوَاوِلُ بَوَايِعُ** نه **قَوَائِلُ** او **بَوَائِعُ** وئيل واجب دي، دالف مثال خکه نشته چې الف دسره نه اصلي نه وي

**فائده :** دوزن دويستلو په وخت کې وزن صرفي استعماليږي دزيربحث قانون په شرطونو کې وزن صوري استعماليږي باقي عروضي چرته هم نه استعماليږي نه دوزن ايستلو په وخت کې او نه دزير بحث قانون په شرطونو کې

---

۱. مثال دحرف علت زائده چې واقع وي دالف مفاعل نه او ماقبل هم ترې نه حرف علت وي لکه قواوق نه طوائق جمع طوقت ده طويل نه طوئل جمع طويلة ده حواول نه حوائل جمع دحوالة ده . سوال : جداول کې پس دالف نه حرف علت شته والې په همزې سره بدل نه شو؟ جواب : مونږه وئيلي وو چې حرف علت زائد وي او دا په حکم داصل کې دې جعفر پورې ملحق دې . سوال : طواويس کې پس دالف مفاعل نه حرف علت شته والې بدل نشو په همزې سره؟ جواب : مونږه وئيلي وو چې حرف علت دالف مفاعل نه پس وي دا دالف دمفاعيل نه پس دي .

**۲۳- قانون : هرهمزه زائده كه واقع شود در اول كلمه وصلي باشد ياقطعي حكم وصلي اينكه دردرج كلام بمتحرك شدن مابعدبيفتدوحكم قطعي عكس اين است، همزه قطعي نه قسم است همزه باب افعال وواحد متكلم واسم تفضيل وجمع واعلام وبناء وفعل تعجب واستفهام وندا وماسوائى ايشان وصلي اند :**

4

ددې قانون نوم دي دهمزه وصلي او همزه قطعي قانون . ددې لپاره دوه حكمونه دي . اول حكم لپاره دوه شرطونه دي كامل .دويم حكم لپاره يو شرط دې :

**فائده :** هغه همزه چې په اول دكلمې كې زائد وي په دوه قسمه ده : يو همزه وصلي او بل همزه قطعي .

**همزه وصلي :** هغه ده چې په مينځ كې راشي نوساقطيږي ، خپل مابعد دخپل ماقبل سره ملاؤ كړي همزه وصليه دلفظي ضرورت په وجه راوړل كيږي پس دضرورت نه په قراءت كې حذفيږي، همزه وصليه په اصل كي مبني وي په كسرې سره لكه : اِضْرِبْ كله ناكله دعين كلمه دمناسبت له وجې مضمومه هم راځي لكه اُنْصُرْ او كله ناكله دثقيل له وجې نه مفتوحه هم راځي لكه اَلْحَمْدُ .

**همزه قطعيه :** هغه ده چې په مينځ كې راشي نوساقطيږي نه، اونه دلفظي ضرورت په وجه راغلې وي .

**اول حكم :** دادې چې همزه وصلي به حذف كول واجب وي .

**اول شرط :** دادې چې همزه وصليه په مينځ دكلام كې واقع وي احترازي مثال لكه اِضْرِبْ دلته همزه په ابتداء دكلام ده . اتفاقي مثال د اِضْرِبْ نه فَاضْرِبْ .

**دويم شرط :** دادې چې همزه وصليه نه مابعد متحرك وي احترازي مثال اِضْرِبْ دلته متحرك نه دي اتفاقي مثال سَلْ په اصل كې اِسْئَلْ (۱) وؤ .

**دويم حكم :** دادې چې همزه قطعي به ثابته ساتل واجب وي .

**شرط :** يې دادې چې همزه قطعي وي احترازي مثال : اِضْرِبْ دا وصلي ده اتفاقي مثال همزه دباب افعال (۲) اَكْرَمَ . دواحد متكلم لكه اَضْرِبُ داسم تفضيل لكه اَضْرَبُ همزه دجمع لكه

---

(۱) اشكال په قانون دېسَئَلُ سره اِسْئَلْ شو دزيربحث په قانون سره سَلْ شو.

(۲) باب افعال يعني برابره خبره ده كه مصدر وي كه ماضي وي كه امر وي .

أَشْرَاقُ همزه داعلام لكه إِسْمَاعِيْل . همزه دبناء (۱) لكه إِنَّ أَنَّ . همزه دفعل تعجب لكه مَاأَضْرَبَهُ همزه دستفهام لكه ءَأَنْذَرْتَهُمْ، همزه دنداء لكه أَعَبْدَاللهِ . دهمزه مابعد متحرك وي او دكلام مينځ وي لكه وَأَعِدُّوْا اصل كې وَاَعْدِدُوْا وو .

**فائده :** چرته چې دهمزه وصليه اول شرط موجودشي هلته كې به همزه قراءةً حذف كيږي نه كتابةً لكه وَاعْلَمُوْا . او چرته چې دويم شرط موجود شي هلته به همزه قراءةً اوكتابة دواړه حذف كيږي لكه : سَلْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ .

**سوال :** بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ كې همزه وصلي واقع ده په منيځ دكلام كې سره ددېنه هم قراءةً حذف ده هم كتابة حذف ده ؟

**جواب :** په دې مقام كې دكثرت قراءت او كثرت كتابت په بناء باندې هم په قراءت كې حذف شوه هم په كتابت كې پدې باندې شاهد دا خبره ده په كوم ځاې كې چې دا ضرورت نه وي نوهلته كتابةً باقي وي لكه : اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ .

## ۲۴- قانون : هرباب كه ماضي او چهار حرفي بود درمضارع معلوم او حرف اتين راحركت ضمه مي دهند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د يُكْرِمُ او يُصَرِّفُ قانون : دې لپاره يوحكم دې او يو شرط دې .

**حكم :** دادې چې مضارع معلوم كې حرف اتين ته حركت ضمه وركول واجب دي .

**شرط :** دادې چې داسې باب وي چې ماضي يې څلور حرفه وي احترازي مثال ضَرَبَ دلته درې حروف دي اِكْتَسَبَ داپنځه حروف دي اتفاقي مثال د أَكْرَمَ او صَرَّفَ نه يُكْرِمُ او يُصَرِّفُ .

---

(۱) همزه بناء هغه كلمه چرته چې همزه وي نو هغه مبني وي كه دا حذف شي معنى به فاسده شي لكه : إِنَّ إِنَّ أَلَتَ .

## ۲۵- قانون هر باب که در اول او تائی زائده مطردة باشد درمضارع معلوم او ماقبل آخر را برحال خودمی دارند وجوباً واگر تائی زائده مطرده نباشد کسره می دهند سوائی ابواب (۱) ثلاثي مجرد :

ددې قانون نوم دې دیُکْرِمُ اویَتَصَرَّفُ قانون . ددې لپاره دوه حکمونه دي هر حکم لپاره یو یو شرط دې .

**اول حکم** : دادې چې مضارع معلوم کې ماقبل آخر په خپل حالت باندې ساتل واجب دي .

**شرط**: یې دادې چې داسې باب وي چې دماضي په اول کې یې تا زائده مطرده وي احترازي مثال أکْرَمَ دلته تا نشته اتفاقي مثال تَصَرَّفَ تَضَارَبَ نه یَتَصَرَّفُ . یَتَضَارَبُ .

**دویم حکم** : دادې چې مضارع معلوم کې ماقبل آخر ته کسره ورکول واجب دي .

**شرط**: یې دادې چې داسې باب وي چې دماضي په اول کې یې تا زائده مطرده نه وي احترازي مثال تَصَرَّفَ دلته تا زائده ده اتفاقي مثال أکْرَمَ ، صَرَّفَ ، دَحْرَجَ نه یُکْرِمُ ، یُصَرِّفُ ، یُدَحْرِجُ .

---

(۱) داقانون دثلاثي مجرد بابونو لپاره نه دې ځکه ابواب ثلاثي مجرد په سماع باندې موقوف دي . یعنې اهل عرب چې چرته کسره ورکړې هلته به سماعاً کسره ویل کیږي . باقي دا قانون دقیاسي بابونو لپاره دې .

## ۲٦- قانون : هر تائی مضارعت که داخل شود بر تائی تفعل یا تفاعل یا تفعلل در مضارع معلوم او حذف یکی جائز است . (۱) :

ددې قانون نوم دې دتَتَصَرَّفُ او تَتَضَارَبُ او تَتَدَحْرَجُ قانون ددې لپاره يوحکم دې اويو شرط دې :

**حکم :** يې دادې چې د مضارع معلوم په دوه تا ګانوکې يو تا حذف کول واجب دي .

**شرط :** يې دادې چه تائی مضارعت داخل وي په زائده مطرده باندې احترازي مثال تَتْرُكُ دلته تائی زائده باندې نه ده داخله . اتفاقي مثال تَتَصَرَّفُ . تَتَضَارَبُ . تَتَدَحْرَجُ نه تَصَرَّفُ تَضَارَبُ تَدَحْرَجُ .

**نوټ :** د اِتَّقَدَ يَتَّقِدُ قانون دمثال په قوانين کې وګوري !

## ۲۷- قانون : اگریکی ازسین شین که واقع شود مقابله فا کلمه باب افتعال تائی ویرا جنس فاکلمه کرده جوازاً جنس را در جنس ادغام می کنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې قانون د اِسَّمَعَ (۲) او اِشَّبَهَ ددې لپاره يوحکم دې او دوه شرطونه دي :

**حکم :** يې دادې چه دتائی افتعال په جنس دفائی افتعال سره بدلول جائز دي او بيا ادغام دجنس په جنس کې واجب دې په قانون دمتجانسين سره .

**اول شرط :** يې دادې چه سين، شين وي احترازي مثال اِجْتَهَدَ دلته سين،شين نشته .

**دويم شرط:** يې دادې چه سين، شين په مقابله دفائی افتعال کې وي احترازي مثال سَمِعَ شَبَهَ اتفاقي مثال اِسْتَمَعَ اِشْتَبَهَ نه اِسَّمَعَ اِشَّبَهَ .

---

(۱) دامام سيبويه او بصريانوپه نزد دويمه تاحذف کول جائز دي ځکه اوله علامه دمضارعه ده والعلامة لا تحذف . دابن هشام او کوفيانو په نزداوله تا حذف کول جائز دې ځکه دويمه تا علامه دباب ده او رعايت دباب ساتل اولی دي . سوال : په دوه تاګې ديو حذف ولې کولې شي ؟ جواب : دوه تا زائده چې په اول دکلام کې راشي نوثقل پيداکوي دې نه بچ کيدلو په خاطريوه تاحذف کولې شي . سوال: دغه وجه خو په مضارع مجهول کې هم ده هلته ولې نه حذفيږي . جواب : که چرته مضارع مجهول باب تفعل کې دويمه تا حذف شي نو دباب تفعيل دمضارع مجهول سره به التباس راشي که چيرته باب تفاعل کې دويمه تا حذف شو نو دباب مفاعله دمضارع مجهول سره به التباس راشي که چرته باب تفاعل کې دويمه تا حذف شي نو دباب مفاعله دمضارع مجهول سره به التباس راشي که چرته باب تفعلل کې دويمه تاحذف شي نو دباب فعلل دمضارع مجهول سره به التباس راشي که چرته اوله تاحذف کړو نو هم ددغه بابونو دمضارع معلوم محذوف التاء سره ئې التباس راځي .

(۲) اِسَّمَعَ او اِشَّبَهَ تا دفا کلمې په جنس سره بدله شوه نو اسسمع او اششبه شو بياجنس په جنس کې مدغم شو په قانون دادغام متجانسين سره نو اِسَّمَعَ او اِشَّبَهَ شول .

## ۲۸- قانون : اگر یکی از صاد ضاد وطا وظا که واقع شود مقابله فا کلمه باب افتعال تایی ویرا طا کنند وجوبا پس اگر مقابله فا کلمه طا است ادغام واجب است اگر ظا است اظهار وادغام دو طرفه یعني طا راظا کردن وعکس او جائز است اگر صاد ضاد باشد اظهار وادغام یک طرفه یعنی طا راصاد ضاد کردن جائز است نه عکس :

ددې قانون نوم دې د اِطَّلَمَ او اِظَّلَمَ قانون ددې لپاره څلورحکمونه دي يوحکم عمومي او يوحکم خصوصي هرحکم لپاره دوه دوه شرطونه دي :

**اول حکم** : يې دادې چه تاء افتعال په طاء سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : يې دادې چه صاد ضاد طا او ظا نه يوحرف وي احترازي مثال اِجْتَهَدَ دلته دغه مذکوره حروفو نه يو حرف هم نشته .

**دويم شرط** : يې دادې چې دغه مذکوره څلورحرفونونه يوحرف په مقابله دفائی افتعال کې راغلي وي احترازي مثال صَبَرَ ضَرَبَ ظَلَمَ دلته باب افتعال نه دې اتفاقي مثال دې اِطَّلَبَ او اِظْتَلَمَ اِصْتَبَرَ نه اِطْطَلَبَ اِظْطِلَمَ اِضْطَرَبَ اِصْطَبَرَ .

**دويم حکم** : يې دادې چې طا به په طا کې مدغم کړي په قانون دمتجانسين .

**اول شرط** : يې دادې چه طا په مقابله دفا کلمه کې وي احترازي مثال اِرْتَبَطَ دلته په مقابله دلام کې ده .

**دويم شرط** : يې دادې چې په مقابله دفاکلمه دباب افتعال کې وي احترازي مثال ظَلَمَ دا دباب افتعال دفا کلمه په مقابله کې نه ده اتفاقي مثال د اِطْطَلَبَ نه اِطَّلَبَ .(۱)

**دريم حکم** : يې دادې چې اظهار جائزوي او ادغام دوه طرفه وي .

**اول شرط** : يې دادې چه ظا وي احترازي مثال اِطْطَلَبَ دلته طا ده .

---

(۱) اِطَّلَبَ اصل کې اِطْتَلَبَ وؤ اول عام حکم سره مو تاافتعال بدله کړه په طاسره نو اططلب شو نو بیاهم دغه حکم سره طا مدغمه شوه په طا کې نو اطلب شو .

**دويم شرط** : يې دادې چې په مقابله دفا دباب افتعال کې وي احترازي مثال **ظَلَمَ** داباب افتعال نه دې اتفاقي مثال د اظهار **اِظْطَلَمَ** دادغام **اِطَّلَمَ اِظَّلَمَ** . (۱)

**څلورم حکم** : يې دادې چې اظهار او ادغام يو طرفه جائز وي .

**اول شرط** : يې دادې چې صاداوضاد وي احترازي مثال : **اِجْتَهَدَ** دلته نه صادشته اونه ضاد .

**دويم شرط** : يې دادې چې مقابله دفا دباب افتعال کې وي احترازي مثال : **صَبَرَ ضَرَبَ** اتفاقي مثال داظهار **اِصْطَبَرَ اِضْطَبَرَ** دادغام (۲) **اِضَّرَبَ اِصَّبَرَ** .

## ۲۹- قانون : اگريکى ازدال،ذال،زا واقع شود مقابله فا کلمه باب افتعال تائى ويرا دال کرده وجوباً را در دال ادغام مي کنندوجوباً وذال مثل ظا وزا مثل صاد ضاد است :

دډې قانون نوم دې د **اِدَّغَمَ اِذَّكَرَ اِزَّجَرَ** قانون . دې لپاره څلور حکمونه دي يو حکم عمومي او درې حکمه خصوصي هرحکم لپاره دوه دوه شرطونه دي :

**اول حکم** : دا دې چې تائى افتعال په دال سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې دال ذال زا نه يو حرف راغلې وي احترازي مثال : **اِكْتَسَبَ** دلته يو هم نشته .

**دويم شرط** : دادې چې په مقابله دفا کلمه دباب (۱) افتعال کې وي احترازي مثال **دَكَرَ ذَكَرَ زَجَرَ** دلته باب افتعال نشته ، اتفاقي مثال : **اِدْتَغَمَ اِدْتَكَرَاِزْ** (۲) **تَجَرَ** نه **اِدْغَمَ اِذْدَكَرَ اِزْدَجَرَ** .

---

(۱) هر کله چې دباب افتعال په فاکلمه کې ظاواقع وي نو تائى افتعال به وجوبا بدليږي په طا ر سره لکه : اظتلم دلته کې اوس درې صورتونه جائز دي . اول صورت فک ادغام (اظهار) لکه اظطلم دا وجې بهتره ده او كثير الاستعمال ده . دويم صورت ادغام يعنې طا بدل په ظا او ظا په ظا کې مدغم کړي لکه اظلم دا صورت هم كثير الاستعمال دې ځکه دلته هم پدې خبره دلالت شته چې فائى افتعال ظا ده نه طا مهمله ليکن دا صورت خلاف القياس ضروري دې . دريم صورت دادغام يعنې ظا معجمه په طا مهمله باندې بدله کړي او طا په طا کې مدغم کړي لکه : اطلم دا صورت قليل الاستعمال دې خو موافق قياس دې .

(۲) هر کله چې صاد او ضاد دفائى افتعال په ځاې واقع شي نو تاء افتعال به وجوباً بدليږي په طا سره لکه : اصطبر اضطرب او دلته دوه صورتونه جائز دي : اول صورت : فک ادغام (اظهار) لکه : اصطبر اضطرب دا صورت احسن دې او اکثر دې ، دويم صورت ادغام يعنى طابه دماقبل په جنس يعنى صاد او ضاد سره بدل کړو بيا به صاد په دصاد کې او ضاد په ضاد کې مدغم کړو لکه : اصبر اضبذ باقي ددې عکس جائز نه په حرف صوي مشفر (ضاد) کې ادغام ناسې دې لکه چې په غير کې دې حالانکه ادغام صرف په خپل مثل کې کيږي مثلا دصاد په صاد او ضاد په ضاد کې او دا ادغام خلاف قياس هم دې . فافهم وانصف .

**دویم حکم** : دادې چې دال په دال کې مدغم کول واجب دي په قانون دمتجانسین .

**اول شرط** : دادې چې دال وي احترازي مثال : اِكْتَسَبَ دلته دال نشته

**دویم شرط** : دادې چې په مقابله دفا دباب افتعال کې وي احترازي مثال : دَغْمَرَ دا باب افتعال نه دي اتفاقي مثال : ادْدَغَمَرَ نه اِدَّغَمَرَ .

**دریم حکم** : دادې چې اظهار جائز دی ، او ادغام به دو طرفه وي .

**اول شرط** : دادې چې ذال وي احترازي مثال اِكْتَسَبَ دلته ذال نشته .

**دویم شرط** : دادې چې په مقابله دفائی افتعال کې به وي احترازي مثال ذَكَرَ داباب افتعال نه دي اتفاقي مثال : داظهار اِذْذَكَرَ دادغام اِذَّكَرَ اِدَّكَرَ .

**څلورم حکم** : دادې چې اظهار او ادغام به یو طرفه جائز وي .

**اول شرط** : دادې چې زا وي احترازي مثال اِكْتَسَبَ دلته زا نشته .

**دویم شرط** : دادې چې دباب افتعال دفا کلمه په مقابل کې به وي احترازي مثال زجر باب افتعال نشته اتفاقي مثال داظهار اِزْدَجَرَ ، دادغام اِزَّجَرَ . (۳)

## ۳۰- قانون : اگر ثاء واقع شود مقابله فا کلمه باب افتعال اظهار وادغام دوطرفه جائز است مگر تا را ثا کردن اولی است :

ددې قانون نوم دې د اِثَّبَتَ قانون : دې لپاره یوحکم دې او دوه شرطونه دي .

**حکم** : دادې چې اظهار هم جائز دې او ادغام دوطرفه هم جائز دې .

---

(۱) دباب افتعال فاکلمه کې چې کله دال مهمله ذال معجمه زائې منقوطه واقع شي نو تاء افتعال به په دال مهمله سره وجوبابدلوي حکه چې دال دتاء سره مخرج کې قریب واقع دې او د ذال او زا سره په صفت کې موافق دې .

(۲) دباب افتعال په فاکلمه کې چې ذال واقع شي نو تا افتعال به وجوباً په دال سره بدلوي لکه اذ تکر نه اذدکر وس دلته درې صورتونه جائز دي اول صورت فک ادغام (اظهار) لکه : اذدکر . دویم صورت ذال به دال سره بدل شي او دال به دال کې مدغم شي لکه ادکر دا صورت احسن دې اقوی دی او موافق قیاس دې . دریم صورت دادې چې دال به ذال سره بدل شي ذال به ذال کې مدغم شي لکه : اذکر دا صورت دقیاس نه خلاف دې .

(۳) زا چې کله په مقابله دفائې افتعال کې واقع شي نو تاء افتعال به وجوباً دال شي لکه د اِزْتَجَرَ نه اِزْدَجَرَ اوس دلته دوه صورتونه جائز دي : اول صورت : فک ادغام (اظهار) لکه اِزْدَجَرَ دا ډیر فصیح دې لکه قول دباري تعالی مُزْدَجَرٌ . دویم صورت : دادغام دال به زا کړي زابه زا کې مدغمه کړي لکه : اِزَّجَرَ دا خلاف القیاس دې ددې عکس جائز نه دې یعنې داچې زا دال کړي او دال په دال کې مدغم کړي لکه ادجر ځکه دحرف صفیر (زا) ادغام په غیر صفیر (ال) کې منع دې .

**اول شرط** : دادې چې ثا وي احترازي مثال إِكْتَسَبَ دلته ثا نشته .

**دويم شرط** : دادې چې په مقابله دفا کلمه دباب افتعال کې وي احترازي مثال ثَبَتَ دا باب افتعال نه دي اتفاقي مثال داظهار إِثْتَبَتَ دادغام اولى مثال إِثَّبَتَ دادغام عدم اولى إِثَّبَتَ وجه داولويَت داده چې اتباع دزائد داصلي سره بهتروي ، نه داچې اصل تابعدار دزائد شي يعنې تا چې ثا شي اجتماع دمثلين به راشي بيا داول دسكون دوجې نه ادغام بالاتفاق واجب دې .

## ۳۱ - قانون : اگر يكى از ده (۱۰) حروف مذكوره بالاواقع شود مقابله عين كلمه باب افتعال تائى ويرا جنس عين كلمه كرده جوازاً ادغام مي كنند وجوباً واگر تاواقع شود ادغام جائز است واگريكى از حروف مذكوره واقع شود مقابله فا كلمه باب تفعل يا تفاعل تائى آنها را جنس فا كلمه كرده جوزاً ادغام مي كنند وجوباً واگر تا باشد ادغام جائز است :

ددې قانون نوم دې د خَصَّمَ كَقَلَّمَ قانون : ددې لپاره څلور حكمونه دي دهر حكم لپاره دوه دوه شرطونه دي

**اول حكم** : دادې چې دباب افتعال تا كلمه دعين كلمې دجنس سره بدلول جائز دي بيا ادغام دجنس په جنس کې واجب دې په قانون دمتجانسين .

**اول شرط** : يې دادې چې دې مذكور لسو(۱۰) حروفو نه يو حرف پکې وي، هغه دادې چې (ضاد ، صاد ، طا ،ظا ،دال،ذال،زا ،سين،شين،ثا) احترازي مثال إِجْتَمَعَ إِقْتَرَبَ دلته دې لسو حروفونه يوحرف هم نشته .

**دويم شرط** : دادې چې دباب افتعال دعين كلمې په مقابله کې وي ، احترازي مثال إِطْتَلَمَ ، إِظْتَلَمَ دلته په مقابله دفاكلمه کې دي اتفاقي مثال إِخْتَصَمَ ، إِكْتَقَلَمَ ، نه خَصَّمَ ، كَقَّلَمَ

**دويم حكم** : دادې چې تاپه تاكې مدغم كول جائز دي دقانون دمتجانيسن مطابق .

**اول شرط** : دادې چې تاوي احترازي مثال إِجْتَمَعَ دلته تا نشته .

**دويم شرط** : دادې چې په مقابله دعين دافتعال کې وي احترازي مثال قتل دا باب افتعال نه دي اتفاقي مثال د إِقْتَتَلَ نه قَتَّلَ (۱)

(۱) چرته چې دوه حروف متجانيسن متحرك دكلمې په آخر کې نه وي نو ادغام واجب نه دې ( كذا في الرضي بحواله دستور لمبتدي) والله اعلم بالصواب .

**دریم حکم** : دادې چې دباب تَفَعُّل او تَفَاعُل تا کلمه دفاکلمې په جنس سره بدلو جائز دي بې جنس په جنس کې مدغم کول واجب دي په قانون دمتجانسين .

**اول شرط** : دادې چې مذکوره لسو حروفو کې يو حرف وي احترازي مثال تَجَنَّبَ تَجَانَبَ دلته دغه حروفو نه يوهم نشته .

**دويم شرط** : دادې چې په مقابله دفاکلمه دباب تَفَعُّل او تَفَاعُل کې وي احترازي مثال تَجَذَّبَ تَجَاذَبَ دلته په عين کلمه کې دې نه په فاکلمه کې اتفاقي مثال (۱) : تَثَاقَلَ تَثَقَّلَ نه اِثَّاقَلَ اِثَّقَّلَ .

**څلورم حکم** : دادې چې تا په تا کې مدغم کول جائز دي .

**اول شرط** : دادې چې تاوي احترازي مثال : تَثَقَّلَ تَثَاقَلَ داتازائده علامه دباب ده اصلي نه ده .

**دويم شرط** : دادې چې دباب تفعل تفاعل دفاکلمه په مقابله کې وي احترازي مثال تَثَقَّلَ تَثَاقَلَ دلته تا دعين کلمه په مقابله کې ده اتفاقي مثال : تَتَرَّكَ تَتَارَكَ نه اِتَّارَكَ اِتَّرَّكَ ددوه هم جنس دادغام له وجې ابتداء په سکون سره محاله وه نوهمزه وصليه په اول کې راوړل شوه .

(۱) تثقل تثاقل کې چې کله تائی زائده دفا په جنس سره بدله شوه نو تثقل تثاقل شو دوه همجنس دادغام دوجې نه چې اول ساکن شو نو ابتداء په ساکن ممکن نه وه لهذا شروع کې همزه وصليه راوړه نو اثاقل اثقل شو باقي مثالونه په دوارو قياس کوه . مثالونه د تفعل بغير دادغام نه : تسمع تهجع تصعد تضرع تطهر تزين تذکر تدثر تظلم . دجنسيت مثالونه : سسمع . ههجع . صصعد . ضضرع . ططهر . ززين . ذذکر . ددثر . ظظلم . امثله جنسيت بعد از ادغام : اسمع . اهجع . اصعد . اضرع . اطهر . ازين . اذکر . ادثر . دتفاعل بغير ادغام مثالونه : تسامع . تهابه . تصابر . تضارب . تطالب . تظاهر . تدارك . تذاکر . تزاجر . دجنسيت مثالونه : سسامع . ههابه . صصابر . ضضارب . ططالب . ظظاهر . ددارك . ذذاکر . ززاجر . مثالونه بعد از ادغام : اسامع . اهابه . اصابر . اضارب .

**۳۲- قانون : اگريكى ازيازده حروف مذكوره ور اونون بعد از لام تعريف (۱) واقع شود لام جنس را ايشان كرده آيد وجوباً واگريكى از ايشان بعد از لام ساكن غير تعريف واقع شود لام را جنس ايشا كرده جوازاً ادغام مى كنند وجوباً سوائى را چرا كه درين جا واجب است :**

ددې قانون نوم دي دحروف شمسي اوقمري (۲) قانون . دې لپاره دوه حكمونه دي دهر حكم لپاره دوه دوه شرطونه دي .

**اول حكم :** دادې چې لام تعريف دحروف شمسيه دجنس سره بدلول واجب دي او بيا ادغام كول هم واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې دحروف شمسيه نه يو حرف وي احترازي مثال : اَلْحَمْدُ دلته دحروف شمسيه نه يو حرف هم نشته .

**دويم شرط :** دادې چې دلام تعريف نه بعد وي احترازي مثال بَلْ سَوَّلَتْ دلته دلام تعريف نه بعد نه دې . اتفاقي مثال اَلرَّحْمَنُ اصل كې اَلْرَحْمَنُ وو لام تعرف په حرف شمسي سره بدل شو اَرْرَحْمَنُ شو ددېنه بعد جنس په جنس كې مدغم شو نو اَلرَّحْمَنُ شو . لام تعريف بـه كتابت كې راځي او قراءت كې به نه راځي .

**دويم حكم :** دادې چې لام ساكن غير تعريف دحروف شمسيه دجنس نه كول جو جائز دي بيا ادغام كول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې دحروف شمسيه نه يو حرف وي احترازي مثال بَلْ فَعَلَ دلته حروف شمسيه نشته

---

(۱) لام تعريف هغه دې چې مخكې ترې الف وي لام تعريف هميشه ساكن وي لكه الحمد . لام غير تعريف هغه دې چې دهغې نه مخكې الف نه وي لكه : بَلْ رَفَعَهُ اللهُ .

(۲) تـول حـروف تهجـي پـه دوه قـسمه دي يـو شمـسي دويـم حـروف قـمري . حرفـو شمـسي ديـارلس دي : صـاد . ضـاد . طا . ظا . دال . ذال . زا . سين . شين . تا . ثا . را . نون . باقي قمري دي . دحروف شمسي مثالونه دلام تعريف نه دجنسيت مثالونه : اسـامع . اشـاكر . اصصابر . اننور . اططالب . اظظالم . ادداخل . اذذاكر . اززاجر . اتتاجر . اثثابت . اررحمن . پس دادغام نه مثالونه : السـامع . الشاكر . الصابر . النور . الطالب . الظالم . الداخل . الذاكر . الزاجر . التاجر . الثابت . الرحمن . دحروف شمسي پس دلام غير تعريف نه : بل سامع بل شاكر . بل ضارب . بل طالب . بل ظالم . بل داخل . بل ذاكر . بل تاجر بل ثابت بل راحم بل نار . دجنسيت مثالونه : بس سامع . بش شاكر . بص صابر . بض ضارب . بط طالب . بظ ظالم الخ . امثله پس دادغام نه : بسامع . بشاكر . بصابر . بضارب . بطالب بظالم الخ .

**دویم شرط**: دادې چې لام ساکن غیر تعریف نه پس وي احترازي مثال اَلرَّحْمٰنُ دلته دلام تعریف نه پس دې اتفاقي مثال بَلْ سَوَّلَتْ . لام ساکن غیر تعریف به دحروف شمسي دجنس نه شي بَلْ سَوَّلَتْ وئیل جائزدي دد ېنه بعدجنس به په جنس کې مدغم شي بَسَّوَّلَتْ وئیل واجب دي .

**فائده** : که چیرته لام ساکن غیر تعریف نه بعد حرف شمسي (را) وي نو بیا لام په (را) سره بدلو واجب دي او را په راکې مدغم کول واجب دي لکه قُلْ رَبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا په خاې قُلْ رَبِّ زِدْنِيْ عَلْمًا .

**سوال**: بَلْ رَانَ کې ټول شرائط موجود دي بیاهم ادغام په کې نه دې شوې ؟

**جواب**: بَلْ رَانَ کې لام او را په مینځ کې وقف واجب دې او ادغام هم واجب دې لیکن دادغام په صورت کې وقف نه پاتې کیږي نوپه یو واجب باندې عمل کولو لپاره دبل واجب نه رجوع کول محض لغوه ده ددې وجې نه وقف باقي ساتل شو .

**وجه دتسمیه** : یې داده چې څرنګه دنمر په راختلو باندې ستوري پټیږي دغه شان ددې حروف په داخلیدلو سره لام تعریف پټیږي او څرنګه چې دقمر په موجود والي کې ستوری باقي وي دغه شان دحروف قمري په داخلیدلو سره لام تعریف باقي وي .

## ۳۳- قانون : هر مضارع مُشَدّدُ الآخر وقت دخول جواز وبنا کردن امر حاضر معلوم درآن سه وجه خواندن جائز است بشرطیکه مضارع مضموم العین نه باشد وگرنه درآن چهار وجه خواندن جائز است :

ددې قانون نوم دې د لَمْ یَحْمَرَّ لَمْ یَحْمَرِ لَمْ یَحْمَرِرْ قانون : ددې لپاره دوه حکمونه دي هرحکم لپاره درې درې شرطونه دي :

**اول حکم** : دادې چې مضارع په دریوطریقو سره وئیل جائز دي :

**اول شرط** : یې دادې چې دمضارع اخر مشدد وي . احترازي مثال لَمْ یَضْرِبْ .

**دویم شرط** : یوحرف جازمه داخل وي . یا امرحاضر معلوم جوړ وي احترازي مثال یَحْمَرُّ تَحْمَرُّ دلته نه حرف جازمه (۱) داخل شوې او نه امر حاضر جوړ شوې .

---

(۱) کوم حرف علت چې په لام کلمه کې دحروف جوازم لکه لم ان شرطیه وغیره په وجه یا دامر حاضر معلوم جوړولو په وجه حذف شوې وي کله چې اتصال دضمیر دفاعل لکه : الف . ولو یانون دجمع مؤنث وشي یااتصال دنون ثقیله یاخفیفه وشي نو حذف شوي حرف علت به واپس راځي لکه : ادع مفرد مذکر نه : ادعو . ادعو . ادعی . ادعون . لکن : ادعوا او ادعی کې دبلې قاعدې په موجودیدلو سره واو مذکوره او یا حذف کیږي دنون ثقیله دااتصال مثال : ادعون او دنون خفیفه دااتصال مثال : ادعون .

**دریم شرط :** دادې چې دمضارع عین کلمه مضموم نه وي احترازي مثال لَمْ يَمُدُّ دلته مضارع مضموم العين ده اتفاقي مثال: يَحْمَرُّ نه لَمْ يَحْمَرَّ لَمْ يَحْمَرِ لَمْ يَحْمَرِرْ او تَحْمَرِرْ نه امر حاضر معلوم لكه: اِحْمَرَّ اِحْمَرِّ . اِحْمَرِرْ .

**دويم حكم :** داچې مضارع معلوم په څلورو طريقو سره ونيل جائز دي .

**اول شرط :** داچې دمضارع آخر مُشَدَّد وي احترازي مثال: لَمْ يَضْرِبْ .

**دويم شرط :** داچې يوحرف جازمه داخل شي يا دامر حاضر معلوم جوړول وي احترازي مثال مَدَّ يَمُدُّ دلته نه خو حرف جازمه داخل دي او نه امر حاضر جوړ شوې .

**دريم شرط :** دادې چې دمضارع عين كلمه مضمومه وي احترازي مثال: لَمْ تَحْمَرْ دلته مضموم العين نه ده اتفاقي مثال د يَمُدُّ نه لَمْ يَمُدَّ لَمْ يَمُدِّ لَمْ يَمُدُّ لَمْ يَمْدُدْ . د تَمُدُّ نه مُدَّ مُدِّ مُدُّ اُمْدُدْ .

**ف :** دمعتل دقواعدونه وړاندې دڅلورو امورو پيژندل ضروري دي :

۱- داعلال لغوي معنى . ۲- اصطلاحي معنى . ۳- اقسام اعلال . ۴- حروف اعلال .

اعلال په لغت كې مطلق تبديلي ته وايي اوپه اصطلاحي كې اعلال تغيير دحرف علت ته وايي . اعلال په درې قسمه دي .

۱- **اعلال بالحذف** . ۲- **اعلال بالقلب** . ۳- **اعلال بالاسكان** . داعلال درې حروف دي : واو . الف . يا .

## ۳۴- قانون : هر واوی که واقع شود مقابله فاکلمه مصدری که بروزن فعل باشد بشرطیکه مضارع معلومش تیز مُعَلّل باشد کسره اش رانقل کرده بمابعد داده آنرا حذف کرده غوضش تائی متحرکه در آخرش درآورند وجوباً بکلیة اِقَامَةٌ وان این است :

ددې قانون نوم دې دِعِدَةٌ قانون . ددې لپاره يو حكم دې او پنځه شرطونه دي :

**حكم:** يې دادې چې دواو حركت كسره به مابعد ته نقل شي او دواو حذف به واجب وي او دحذف شده حرف په بدله كې به آخر كې تاراوړل واجب وي په قانون د اِقَامَةٌ ، اِسْتِقَامَةٌ

**اول شرط :** دادې چې واو وي احترازي مثال: يُسْرٌ دلته ياده .

**دویم شرط** : دادې چې دفاکلمه مقابله کې به وي احترازي مثال قَوْلٌ دلته دعین کلمه په مقابله کې دې.

**دریم شرط** : دادې چې صیغه دمصدر وي احترازي مثال وِزْرٌ. وِتْرٌ دا مصادر نه دي.

**څلورم شرط** : دادې چې دا مصدر په وزن دفِعْلٌ وي احترازي مثال وَصْلٌ دا وزن دفِعْلٌ نه دې.

**پنځم شرط** : دادې چې واوهم دغه باب په فعل مضارع معلوم کې حذف شوې وي احترازي مثال: وِجْلٌ ددې باب مضارع معلوم يُوْجَلُ سالم دې اتفاقي مثال عِدَةٌ چې اصل کې وِعْدٌ وو.

## ۳۵- قانون : در مصدر هر حرفیکه بجز التقائی تنوینی بیفتد عوضش تائی متحرکه درآخرش درآرند وجوباً مگر لغةٌ ومِأةٌ شاذ اند :

ددې قانون نوم دې د اِقَامَةٌ او اِسْتِقَامَةٌ قانون: ددې لپاره یوحکم دې او دوه شرطونه دي:

**حکم** : دادې چې دحذف شده حرف په عوض کې تائی متحرکه په آخرکې راوړل واجب دي.

**اول شرط** : دادې چې په صیغه دمصدر کې یو حرف ساقط شوې وي، احترازي مثال: يَعِدُ دلته په مضارع کې حرف دواو ساقط شوې دې.

**دویم شرط** : دادې چې داحذف دالتقائی تنویني دوجې نه،نه وي یعنې دویم ساکن نون تنوین نه وي احترازي مثال هُدًى (۱) اصل کې هُدَىٌ وو. اتفاقي مثال چرته چې ساکن نون تنوین نه وي مثال اَقْوَامٌ (۲) نه اِقَامَةٌ اِسْتِقْوَامٌ نه اِسْتِقَامَةٌ. اوچرته چې دویم ساکن بلکل نه وي مثال د وِعْدٌ نه عِدَةٌ.

**اعتراض** : لُغَةٌ مِأَةٌ اصل کې لُغَوٌ مِأَيٌ وو قانون د قَالَ مطابق لُغَانٌ، مِأَانٌ شو التقاء ساکنین راغله په مابین دالف او تنوین کې اول ساکن مدّه وو لهذا حذف شو په عوض کې ئی په آخر کې تاراغله نولُغَةٌ مِأَةٌ شول خلاصه داچې دویم شرط نشته بیاهم آخرکې الحاق دتا څرنګه راغلو ؟

---

(۱) هدیً اصل کې هُدیٌ وو دقال او باع دقانون مطابق هدان شو دوه ساکنین جمع شو اول مده وو حذف شو نو هدی شو دلته کې زیر بحث قانون نشي جاري کیدې ځکه دویم ساکن نون تنوین دې.

(۲) اقامة اصل کې اقوام وو دیقال دقانون مطابق اقام شو دوه الفه ساکنین جمع شول دویم ساکن نون تنوین نه دې امام اخفش اول الف حذف کوي امام سیبویه دویم الف حذف کوي دېنه بعد به دحذف شده حرف په عوض کې تاراشي اقامة جوړ شو دې بانديې استقامة قیاس کوه دغه تا په حالت داضافت کې حذف کول جائز دي لکه : اقام الصلوة هذ الامر اصل کې اقامة هذه وو.

**جواب :** دا اعتراض نتيجه ده په عبارت دمصنف کې دکم غورکولونه، ځکه مصنف په خپله په دې تصريح کړې ده چې داشاذدې يعنې مخالف قياس موافق داستعمال ديته شاذ احس وائي

## ۳۶ـ قانون : هر واو ساكن مظهر غير واقع مقابله فاكلمه باب افتعال ماقبلش مكسور آن واو رابيا بدل كنند وجوباً بشرطيكه باعث تحريكش موجودنباشد :

ددې قانون نوم دې د مِيْعَادٌ قانون : ددې لپاره يو حکم دې او شپږ شرطونه دي :

**اول حکم :** دادې چې واو ديا سره بدلول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې واو وي احترازي مثال يُسْرٌ دلته واو نشته .

**دويم شرط :** دادې چې ساكن وي احترازي مثال : عِوَضٌ دا متحرك دې .

**دريم شرط :** دادې چې مظهروي احترازي مثال اِجْلِوَّاذٌ دا مدغم دې .

**څلورم شرط :** شرط دادې چې واو په مقابله دفائی افتعال کې نه وي احترازي مثال اِتَّقَدَ اصل کې اِوْتَقَدَ وو دلته واو په مقابله دفائی دافتعال کې دې .

**پنځم شرط :** دادې چې دواو ماقبل مكسور وي احترازي مثال : قَوْلٌ مُوْجِبٌ دلته مفتوح او مضموم دي .

**شپږم شرط :** دادې چې دې واو ته حركت وركولو والاسبب موجود نه دې احترازي مثال اِوَزَّةٌ اصل کې اِوْزَزَةٌ وو ادغام د زا په زا کې چې وشي دې صورت کې دواو دحركت سبب موجود دې اتفاقي مثال مِوْعَادٌ مِوْعَدَةٌ نه مِيْعَا مِيْعَدَةٌ .

## ۳۷ـ قانون : هر واو ويائی ساكنه غيربدل از همزه كه واقع شود مقابله فاكلمه باب افتعال يا تفعل يا تفاعل آن را تاكرده در تا ادغام مي كنند وجوباً براكثر لغت اهل حجاز در افتعال وبر بعض لغت اهل حجاز در تفعل وتفاعل مگر اتخذ يتخذ شاذ است :

ددې قانون نوم دې د اِتَّقَدَ اِتَّسَرَ قانون (۱) ددې لپاره دوه حكمونه دي هر حكم لپاره درې درې شرطونه دي

(۱) اتقد اتسر اصل کې او تقد اوايتسر وؤ او يابدل شو په تا اتتقد او اتتسر شول دېنه پس تا په تا کې مدغمه شوه اتقد اتسر شول دلغت دفصيح والي دوجې نه درجه دوجوب ته رسيدلې دې . نوټ : او تقد کې په قانون دميعاد سره واو بدل په په يانشو ځكه دواو نه

**اول حكم :** دادې چې واو او يا به تاكړې او تا به تا كې مدغم شي وجوباً

**اول شرط :** دادې چې واو او ياوي احترازي مثال : اِجْتَهَدَ، اِكْتَسَبَ دلته واو اويا نشته .

**دويم شرط :** دادې چې واو اويا په بدله دهمزه كې نه وي احترازي مثال اِئْتَمَرَ اُوْتُمِرَ اصل كې اِءْتَمَرَ اُءْتُمِرَ وو دلته واو يادهمزه په بدله كې دي .

**دريم شرط :** دادې چې په مقابله دفاكلمه دباب افتعال كې وي احترازي مثال : اِجْتَوَبَ اِخْتَيَرَ دلته دعين كلمه په مقابله كې دې اتفاقي اِتَّعَدَ اِتَّسَرَ چې په اصل كې اَوْتَعَدَ او اِيْتَسَرَ وو

**دويم حكم :** دادې چې واو اويا په تاسره بدلول جائز او بياتاپه تاكې مدغم كول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې واو او ياوي احترازي مثال تَضَرَّبَ تَضَارَبَ . دلته واو اويانشته .

**دويم شرط :** دادې چې واو او ياپه بدله دهمزه كې نه وي احترازي مثال : تُوْذِبَ تُوْوْدِبَ اصل كې تُؤْذِبَ وو .

**دريم شرط :** دادې چې په مقابله دفاكلمه دباب تَفَعُّل او تَفَاعَل كې وي احترازي مثال: تَقَوَّلَ . تَحَيَّرَ تَقَاوَلَ تَبَايَعَ دلته په مقابله دعين كلمه كې دي اتفاقي مثال (۱) : تَوَعَّدَ تَيَسَّرَ نه اِتَّعَّدَ اِتَّسَّرَ تَوَاعَدَ تَيَاسَرَ نه اِتَّاعَدَ اِتَّاسَرَ .

## ۳۸- قانون : هر دال ساكن مابعدش تائى متحرك غير تا افتعال باشد ان را تاكرده در تا ادغام مي كنند وجوباً بشرطيكه وحدت كلمه باشد وگرنه جائز است همچنين تائى ساكن مابعدش دال متحرك باشد ان را دال كرده در دال ادغام مي كنند وجوباً بشرطيكه وحدت كلمه باشد وگرنه جائز است :

ددې قانون نوم دې د وَعَدْتُّ قانون . ددې لپاره څلور حكمونه دي :

اول حكم لپاره څلورشرطونه دي باقي درې حكمونولپاره درې درې شرطونه دي .

---

ماقبل كسره په مقام دزوال كې ده او واو دتا سره قريب المخرج دې لهذا ددې علت په بناء باندې يو قوي راجح پيدا شو او دميماد والا دقانون توهم زمونږه نه لرې شو .

(۱) مثال تفاعل اتاعد اتاسر اصل كې تواعد تياسر وؤ واو ايا بدل شو په تا نو تتاعد تتاسر شو دېنه بعد تا په تا كې مدغمه شوه ابتداء بالساكن محال وه لهذا اول كې همزه وصليه راوړه نو اياعد اتاسر شول مثال دتفعل اتعد اتسر اصل كې توعد تيسر وؤ واو يا تا شو تتعد او تتسر شول دېنه بعد تا په تا كې مدغم شوه ابتداء بالساكن محال وه همزه وصليه ئې اول كې راوړه اتعد اتسر شو . فائده : همزه وصليه به هلته راځي چې ابتداء بالساكن چرته كې محال وي مثلا بره مثالونو كې . او چيرته چې ابتداء بالساكن محال نه وي هلته به همزه وصليه نه راوړو لكه يتواعد يتوعد نه يتاعد يتعد الخ دا لغت بالكل شاذ دې او قليل دې .

**داولني حكم لپاره اولنۍ شرط:** دادې چې دال ساكن وي احترازي مثال وَعَدَ دلته ساكن نه دي

**دويم شرط :** دادې چې دال نه بعد تائى متحركه وي احترازي مثال وَعَدْنَ كې بلكل تانشته

**دريم شرط :** دادې چې دا تادباب افتعال نه وي احترازي مثال اِدْتَعَمَ دلته دال ساكن نه بعد تا افتعال ده .

**خلورم شرط :** دادې چې دال ساكن او ددې نه مابعد په كلمه واحده كې وي احترازي مثال قَدْ تَبَيَّنَ دلته دال او دهغه مابعد په جداجدا كلماتو كې دي اتفاقي مثال وَعَدْت نه وعدُتّ .

**اول شرط :** دادې چې دال ساكن وي احترازي مثال وَعَدَ دلته دال ساكن نه دې .

**دويم شرط :** دادې چې دال نه مابعد تا متحركه وي احترازي مثال وَعَدْنَ دلته تانشته .

**دريم شرط :** دادې چې دال او دهغه مابعد متحرك په جُدا جُدا كلماتوكې وي احترازي مثال وَعَدْتَ دلته كلمه جُدا نه ده اتفاقي مثال قَدْ تَبَيَّنَ نه قَدْ تَّبَيَّنَ .

**دريم حكم :** دادې چې تابه دال شي او دال به په دال كې مدغم شي وجوباً .

**اول شرط :** دادې چې ن[illegible]كنه وي احترازي مثال سَكَتَ دلته ساكنه نه ده .

**دويم شرط :** دادې چې تانه بعد دال متحرك وي احترازي مثال قَالَتِ ادْعُوْا دلته دتانه بعد دال ساكن دې .

**دريم شرط :** دادې چې تا اومابعد دال په يوه كلمه كې وي احترازي مثال : اَلْوَتْدُ.اتفاقي مثال اَثْقَلَتْ دَعَوَاللهَ دلته جُدا جُدا كلمات دي . اتفاقي مثال اَلْمَتْدُ نه اَلْمَدُّ وئيل واجب دي . (١)

**خلورم حكم :** دادې چې تابه دال كرې او دال به په دال كې مدغم شي جوازاً .

**اول شرط :** دادې چې تائى ساكنه وي احترازي مثال سَكَتَ .

**دويم شرط :** دادې چې تانه پس دال متحرك وي احترازي مثال قَالَتِ ادْعُوْا .

**دريم شرط :** دادې چې تا اودهنه مابعد دال په جدا جدا كلماتوكې وي احترازي مثال اَلْوَتْدُ دلته جدا كلمه نه ده اتفاقي مثال : اَثْقَلَتْ دَعَوَا اللهَ نه اَثْقَلَتْ دَّعَوَاللهَ وئيل جائز دي

## ۳۹ - قانون : هر واو مضموم يامكسور كه واقع شود در اول كلمه مابعدش ديگر واو تحرك نباشد يامضموم مخفف بحركت لازمي مقابله عين كلمه باشد همزه شود جوازاً بشرطيكه درمضارع معلوم نباشد :

ددې قانون نوم دې : د أُعِدَ إِشَاحٌ قانون دې لپاره يوحكم دې دشرطونودوه جماعته دي اول جماعت لپاره درې شرطونه دي او دويم لپاره پنځه شرطونه دي .

**حكم** : يې دادې چې واو په همزه سره بدلول جائز دي .

**داول جماعت اولنى شرط** : دادې چې واو مضموم يامكسور وي احترازي مثال وَعَدَ دلته مفتوحه دې .

**دويم شرط** : دادې چې واو په اول دكلمه كې وي احترازي مثال قُوِلَ دلته په مينځ كې دې .

**دريم شرط** : دادې چې دې واو (۱) نه بعد بل واو متحرك نه وي احترازي مثال وُوَيعِدٌ دلته واو نه پس بل واو متحرك دې اتفاقي مثال وُعِدَ وِشَاحٌ وُوْعِدَ نه أُعِدَ إِشَاحٌ أُوْعِدَ وئيل جائز دي .

**دويم جماعت اول شرط** : دادې چې واو مضموم وي احترازي مثال قُوِلَ دلته واو مكسوردې .

**دويم شرط** : دادې مخفف وي احترازي مثال تَحَوُّلٌ دلته مشدد دې .

**دريم شرط** : دادې چې ددې واو حركت لازمي وي احترازي مثال رَاوُوْنَ اصل كې رَاوِيُوْنَ وو دلته واو حركت ضمه عارضي ده .

**څلورم شرط** : دادې چې په مقابله دعين كلمه كې وي احترازي مثال يَدْعُوْ دلته دلام كلمه په مقابله كې دې .

**پنځم شرط** : دادې چې مضارع معلوم نه وي احترازي مثال يَقُوْلُ دلته مضارع معلوم ده اتفاقي مثال قَوْل أَدْوُرٌ نه قَوْلَ (۲) أَدْؤُرٌ وئيل جائز دي .

---

(۱) دلته دواو نه بعد دواو متحرك نفي ده لكه وُوِرَ كه ددې واو نه بعد بل واو بلكل نه وي يا وي خو ساكن وي نو په دواړو صورتونو كې به قانون جاري كيږي لكه وعد ووعد نه اعد او اوعد ئيل جائز دي . فائده : كله ناكله واو مفتوحه هم په همزې سره بدليږي لكه احد اناة اسماء څوك چې دا په وزن دفعلاء مني چې اصل كې وحد وناة وسماء وؤ دغه رنګه كله واو مضمومه په تاسره هم بدليږي لكه : تجاة تكلان تراث اصل كې وجاه وكلان وراث وؤ واو مفتوحه او تا په همزې سره بدلول شاذ دي قياسي نه دي په حسب دسماع سره دي لهذا حكم مذكوره لپاره منتقض نه ګرځي ځكه مذكوره قانون اكثر دې كلي نه دې .

(۲) دا خبره دې واضحه وي چې دلته د واو وسط په همزې سره بدليږي ددې ذكر دلته په تبع د واو مضمومه در اول كلمه شوې دې ورنه ددې ذكر په قوانين داجوف كې پكار ؤو .

**۴۰ - قانون : هرباب مثال واوي بروزن مَنَعَ يَمْنَعُ ياكه ماضي اونيافته شده باشد يامضارع معلومش بروزن يَفْعِلُ باشد درمضارع معلوم او فاكلمه راحذف كنند وجوباً وازباب فَعِلَ يَفْعِلُ در دو باب وَسِعَ يَسِعُ وَطِئَ يَطِئُ نيز :**

ددې قانون نوم دې د يَعِدُ قانون : دې لپاره يوحكم او دشرطونودرې جماعتـه دې هر جماعت لپاره دوه دوه شرطونه دي :

**حكم :** دادې چې مضارع معلوم كې فاكلمه حذف كول واجب دي .

**داول جماعت اول شرط:** ددې چه باب دمثال (۱) واوي وي احترازي مثال يَسَرَ دامثال ديائي دې .

**دويم شرط :** دادې چه مَنَعَ يَمْنَعُ په وزن به وي احترازي مثال وَسُمَ يَوْسُمُ چه داپه وزن د مَنَعَ يَمْنَعُ نه دې اتفاقي مثال وَضَعَ يُوْضَعُ نه يَضَعُ .

**ددويم جماعت اول شرط:** دادې چې باب دمثال واوي وي احترازي مثال يَسَرَدامثال يائي دې .

**دويم شرط :** دادې چه داسې باب وي چه ماضي قليل الاستعمال وي احترازي مثال وَسُمَ يَوْسُمُ ددې باب ماضي كثير الاستعمال ده اتفاقي مثال يَوْذَرُ يَوْدَعُ نه يَذَرُ يَدَعُ .

**ددريم جماعت اول شرط :** دادې چې باب مثال واوي وي احترازي مثال يَسَرَ دامثال يائي دې .

**دويم شرط :** دادې چې مضارع ئې مكسورالعين وي احترازي مثال وَسُمَ يَوْسُمُ دامضموم العين ده اتفاقي مثال يَوْعِدُ نه يَعِدُ يَوْرِمُ نه يَرِمُ مضارع مكسورالعين وي ماضي عام ده كه مكسورالعين وي كه مفتوح العين وي .

**فائده :** دعَلِمَ يَعْلِمُ په وزن باندې دوه داسې بابونه دي چه سماعاً په كې واو حذف شوې دې هغه دادي وَسَعَ يَوْسَعُ وَطِئَ يَوْطِئُ نه يَسَعُ يَطَئُ

---

(۱) دمثال واوي قيد لگولو سره يې مثال يائي خارج كړو لفيف نه احترازي نشته يعنې قانون دلفيف كې به جاري كيږي باقي يئس يأتس اصل كې ييئس وو مضارع په حذف ديا سره ياپه يا ابدال دالف سره دمذكوره قانون دشاذ څخه دي .فائده : كله چې دابدال او دحذف خپلو كې تعارض وي نو ترجيح به حذف ره ور كولې شي لپاره دتخفيف دكلام لكه : اوعد دلته ديمد قانون جاري شوې دې نه دميعاد .

## ۴۱ - قانون : دو واو متحرک که جمع شوند دراول کلمه واو اولی رابهمزه بدل كنند وجوبا :

ددې قانون نوم دې د أَوَاعِدُ أُوَيْعِدُ قانون (۱) دې لپاره يوحکم او څلور شرطونه دي :

**حكم :** يې دادې چې اول واو به په همزه سره بدلول واجب وي .

**اول شرط :** يې دادې چه دوه واوه (۲) وي احترازي مثال وَعَدَ دلته يو واو دي .

**دويم شرط :** يې دادې چې دواړه متحرك وي احترازي مثال : وُوْرِيَ دلته يومتحرك دې .

**دريم شرط:** دادې چې دواړه واوه يوځاې وي احترازي مثال وَلْوَلَ دلته يوځاې نه دې .

**څلورم شرط:** دادې چې دواړه دكلمې په اول كې وي احترازي مثال قَوِوَ دلته په اخر كې دي ، اتفاقي مثال وَوَاعِدُ نه أَوَاعِدُ وُوَيْعِدٌ نه أُوَيْعِدٌ .

## ۴۲ - قانون : هر باب مثال واوي از عَلِمَ يَعْلِمُ كه غير محذوف الفا باشد درمضارع معلوم او سوائی اصل سه وجه خواندان جائز است چنانچه در يَوْجَلُ يَاجَلُ يَيْجَلُ خواندن است :

ددې قانون نوم دې د يَاجَلُ يَيْجَلُ يِيْجَلُ قانون . دې لپاره يوحكم او درې شرطونه دي :

**حكم :** يې دادې چې مضارع معلوم كې سوى داصل نه درې وجهوسره وئيل جائز دي .

**اول شرط :** دادې چې مثال واوي وي احترازي مثال يَسَرَ دا مثال يائى دې .

---

(۱) مصنف ددې قانون په ذكر كې دشيخ ابن حاجب په مذهب اكتفاء كړې ده ورنه دنورو محققيونو دا مذهب دې چې كه چرته دويم واو مده په بدل دحرف زائده كې وي نو همزې سره بدلول جائز دي لكه وُوْرِيَ ماضي مجهول دويم واو دالف په بدله كې راغلې دې اصل كې وَارِيَ وو . كه چيرته دويم واو مده نه وې لكه أَوَعِدُ چې اصل كې وَوَعِدُ وو . يا دويم واو دچا په بدله كې نه وي لكه أُوْعَادٌ اصل كې وُوْعَادٌ په وزن د طُومَارٌ . يا دويم واو بدل وي د حرف صحيح نه لكه أُوْلِ وو په مسلک دكوفيانو بياهمزه بدله شوه وُوْلِ شو دوه واوه جمع شول په دې درې واړو صورتونو كې واو اول په همزې سره بدلول واجب دي .

(۲) اول واو په همزې سره بدليږي وجوبا دې وجه نه ددوه هم مثل متحرک حرفونو جمع كيدل په شروع دكلمې كې ثقيل وي خاص كر چه دوه حرف علت وي او بيا ددوه واوو جمع كيدل چې دا په حرف علت كې دټولونه زيات ثقيل وي ، دې ثقل لرې كولو لپاره اول واو په همزې سره بدليږي لكه وَوَاعِدُ نه أَوَاعِدُ .سوال : دويم واو ولې په همزې سره نه بدليږي حالانكه دثقل هم دفعه دې ؟ جواب : ددويم : واو دهمزې سره بدلول په صورت كې مقصود نه حاصليږي ځكه دواو عطف يا واو قسم ددخول په وخت كې هم ثقل باقي پاتې وي .

**دویم شرط :** دادې چې عَلِمَ يَعْلَمُ په وزن وي احترازي مثال وَسُمَ يَوْسُمُ داد شَرُفَ يَشْرُفُ په وزن دې .

**دریم شرط :** دادې چې فاکله ئې حذف نه وي احترازي مثال وَسَعَ يَسَعُ دا محذوف الفاء دې اتفاقي مثال وَجَلَ يَوْجَلُ نه يَاجَلُ يِيْجَلُ يَيْجَلُ .

## ۴۳ - قانون : هر یائی ساکن مظهر غیر واقع مقابله فاکلمه باب افتعال ما قبلش مضموم آن را بواو بدل کنند وجوباً بشرطیکه درجمع اَفْعَلُ فُعْلَاء صفتي وفُعْلَى صفتي (۱) واسم مفعول ثلاثي مجرد اجوف یائي نباشد اگر باشد ضمه ما قبلش رابکسره بدل کنند وجوباً .

ددې قانون نوم دې دیُوْسِرُ قانون :

**فائده :** هغه اسم چه په وزن د اَفْعَلُ وي هغه درې قسمه دي :

۱ - اسمي ۲ - تفضیلي ۳ - صفتي .

**۱ - اسمي :** هغه دې چه د اَفْعَلُ په وزن دې چه اسم وي لکه اَحْمَدُ دانوم دې او په وزن د اَفْعَلُ دې .

**۲ - تفضیلي :** هغه اسم دې چه په وزن د اَفْعَلُ وي چه په هغې کې دزیادت والامعنی اعتبار وي لکه اَضْرِبُ په معنی دډیروهونکي سرې پدې کې داسمي او صفتي معنی اعتبار نه وي .

**۳ - صفتي :** هغه ته وائي چه په وزن د اَفْعَلُ اسم راغلې وي او دصفتي معنی اعتبار وي پکې لکه اَبْيَضُ په معني دهغه ذات سره چه سپین والې پکې وي په دې کې دعَلَمَ والي او دزیات دمعنی اعتبار نشته .

وزن فُعْلَى هم په دري قسمه دي

(۱) دفعلی سره دصفتي قید په لگولو سره اسمي خارج شو ځکه فعلی اسمي کله په واو سره بدلیږي لکه : طیبی ، کیسی نه طوبی ، کوسی ، جوړ شو ځکه په دوې کې اسمیت غالب دې . باقي تفضیلي هم داسمي په حکم کې دې ځکه تفضیلي بغیر دلام او اضافت او من نه ، نه استعمالیږي او دا دري واړه خواص داسم دې ځرنګه چې دا دامام سیبویه مذهب دې . سوال : فعلی اسمی کې یا په واو سره بدلیږي په صفتي کې ولې نه بدلیږي ؟ جواب : داسمي او صفتي په مابین کې دفرق خاطر . سوال : فرق دعې په عکس سره هم حاصلیدو ؟ جواب : صف کې ثقل دې په اعتبار دمعنی سره او واو دیاته ثقیل دې که چرته یا په واو سره بدل کړو نو هم به ثقل معنوی راشي هم ثقل لفظي او دا جائز نه دې ، دې وجې نه خو دصفتي ماقبل ضمه په کسرې سره بدلیږي والله اعلم بالصواب .

**۱- اسمي :** هغه دې چه د **فُعْلى** په وزن دچا لپاره **عَلَمْ** وي لكه **طُوْبىٰ** ديوې ونې نوم دې .

**۲- تفضيلي :** هغه دې چه وزن د **فُعْلى** وي او دمعنى دزيادت اعتبار وي په كې لكه **ضُرْبىٰ** په معنى د ډيره وهونكې ښځه .

**۳- صفتي :** هغه دې چه وزن د **فُعْلى** وي او دمعنى صفتي پكې لحاظ وي لكه **حُيْكىٰ** هغه ښځه چه ناز او نحرو سره گرځي .

دوزن **فَعْلَاء** دوه قسمه دي اسمي او صفتي .

**۱- اسمي :** هغه دې چې په وزن د**فَعْلَاءُ** باندې علم وي لكه **صَحْرَاءُ** . **دَرْدَاءُ** .

**۲- صفتي :** هغه وزن د**فَعْلَاءُ** چې دصفتي معنى اعتبار پكې وي لكه **بَيْضَاءُ** په معنى دسپينه ښځه .

دې قانون لپاره دوه حكمه دي اول حكم لپاره اوه (۷) شرطونه دي دويم حكم لپاره دشرطونو درې جماعته دي هرجماعت لپاره پنځه شرطونه دي .

**اول حكم :** دادې چې ياپه واو سره بدلول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې يا ساكنه وي احترازي مثال **يَسَرَ** دلته يا متحركه ده .

**دويم شرط :** دادې چې مظهر وي احترازي مثال **مُيِّزَ** دا مدغم دې .

**دريم شرط:** دادې چه دې يانه ماقبل مضموم وي احترازي مثال **بَيْعٌ** دلته ماقبل مفتوح دې

**څلورم شرط :** دادې چې به دافتعال دفاكلمه په مقابله كې نه وي احترازي مثال : **اُيْتُسِرَ** دلته دباب افتعال دفا په مقابله كې ده .

**پنځم شرط :** دادې چې د **اَفْعَلْ فَعْلَاءُ** صفتي په جمع كې نه وي لكه **بِيْضٌ** چې داد ابيض (مذكر) او **بَيْضَاءُ** (مؤنث) مشتركه جمع ده .

**شپږم شرط :** دادې چې **فُعْلى** صفتي كې نه وي احترازي مثال **حُيْكىٰ** .

**اوم شرط :** دادې چې دثلاثي مجرد اجوف يائي په اسم مفعول كې نه وي احترازي مثال **مَبِيْوْعٌ** وو اتفاقي مثال **يُسِرُ** نه **يُوْسَرُ**

**دويم حكم :** دادې چې ديانه ماقبل كسره په ضمه سره بدلول واجب دي

**داول جماعت اولنې شرط :** چې يا ساكن وي احترازي مثال **يَسَرَ**

**دویم شرط** : دادې چې مظهروي احترازي مثال مُيَّزَ .

**دریم شرط** : داچې دېنه ماقبل مضموم وي احترازي مثال بَيْعٌ .

**څلورم شرط** : دادې چې یاپه مقابله دفاکلمه دباب افتعال کې نه وي احترازي أُيْتُسِرَ

**پنځم شرط** : دادې چې د أَفْعَلُ فَعْلَاءُ صفتي په جمع کې وي احترازي مثال يُوْسَرُ اتفاقي مثال : بُيْضٌ (د ابْيَضُ مذکر او بَيْضَاء مؤنث جمع ده) نه بِيْضٌ .

**ددویم جماعت اول شرط** : دادې چې یاساکن وي احترازي مثال يَسَرَ .

**دویم شرط** : دادې چې مظهروي احترازي مثال بَيَّعَ .

**دریم شرط** : دادې چې ماقبل مضموم وي احترازي مثال بَيْعٌ

**څلورم شرط** : دادې چې په مقابله دفا دباب افتعال کې نه وي احترازي مثال أُيْتُسِرَ .

**پنځم شرط** : دادې چې داسم مفعول دثلاثي مجرد په اجوف یائی کې وي احترازي مثال يُيْسِرُ. اتفاقي مثال مَبْيُوْعٌ نه مَبِيْعٌ (١)

**٤٤- قانون : هر واو ویا متحرک بحرکت لازمي که ماقبلش مفتوح باشد از آن یک کلمه بالف مبدل شود وجوباً بشرطیکه آن واو ویا مقابله فا کلمه وعین کلمه ناقص ودرحکم عین کلمه ناقص نباشد وما بعدش مده زائده که لازم بود تحقق وسکون او وحرف تثنیه والف جمع مؤنث سالم ویائی مده مشدده ونون تاکید نباشد وآن کلمه بروزن فُعُلَانِ و فُعُلى وبمعنى آن کلمه که درآن تعلیل نیست نه باشد ومقابله عین کلمه ملحق ومقابله عین کلمه بدل ازحرف صحیح ومقابله عین کلمه فعل تعجب نباشد :**

ددې قانون نوم دې د قَالَ او بَاعَ قانون دې لپاره یوحکم دې او اتلس شرطونه دي چه په دې کې اولني څلور وجودي دي اوباقي عدمي دي :

**حکم** : دادې چې واو او یا په الف سره بدلول واجب دي

(١) مَبِيْعٌ اصل کې مَبْيُوْعٌ وو دبیع په قانون مَبْيُوْعٌ شو بیاهم ددغه قانون په حکم ثاني سره دیانه ماقبل ضمه بدله شوه په کسرې سره مَبِيُوْعٌ شو پس ددېنه اجتماع دساکنین راغله په مابین د واو او یا کې اول ساکن مده وو حذف شو نو مبوع شو بیا دمیعاد په قانون سره مَبِيْعٌ شو .

**وجودي شرطونه :**

**اول شرط**: دادې چې واو اويامتحرک وي احترازي مثال قَوْلٌ او بَيْعٌ داساكن دي .

**دويم شرط** : دادې چې حركت د واو او يا لازمي وي عارضي (۱) نه وي احترازي مثال لَوِاسْتَطَعْنَا جَيْئَلْ اصل كې لَوْاِسْتَطَعْنَا جَيْئَلْ .

**دريم شرط** : دادې چې واو او يانه ماقبل مفتوح وي احترازي مثال قُوِلَ او بُيِعَ ماقبل مفتوح نه دي .

**څلورم شرط** : دادې چې واو او يانه ماقبل مفتوح په يو كلمه كې وي احترازي مثال فَوَعَدَ سَيَقُوْلُ دلته فا او سين جُدا جُدا كلمه ده .

**عدمي شرطونه:**

**پنځم شرط** : دادې چه دفاكلمه په مقابله كې د واو او يا نه وي احترازي مثال تَوَعَّدَ تَيَسَّرَ دلته واو او يا دفا مقابله كې دي .

**شپږم شرط** : دادې چې واو او يا دعين كلمه په مقابله كې په باب دناقص كې نه وي احترازي مثال قَوِيَ حَيِيَ لفيف مقرون ته مجازاً ناقص وائي نو مطلب داشو چې دلفيف مقرون (۲) دعين كلمه په مقابله كې نه وي .

---

(۱) حركت عارضي په حكم دسكون كې وي عارضي حركت په درې قسمه دي : ۱- به سبب نقل . ۲- بسبب التقاء ساكنين . ۳- برائی متابعت . ۱- به سبب نقل دېته وائي چې ديو حرف حركت دعذر په سبب باندې ماقبل ته نقل شي لكه : حوءب جيئل كې دهمزې حركت نقل شو ما قبل ته او همزه حذف شوه نو حوب او جيل شو . ۲- بسبب التقاء ساكنين ديته وائي چې داجتماع ساكنين په وجه يو حرف ته حركت وركړې شوې وي لكه لواستطعنا دعوالله همزه وصليه په درج دكلام كې حذف شوه بيا التقاء ساكنين راغله په ملين د واو او سين او واو اولام كې اول ساكن ته حركت ملاو شو نو لواستطعنا دعوالله شو . ۳- برائی متابعت دېته وائي چې يو حرف ته دبل حرف تابعداري په وجه حركت ملاو شي يعني دمتابع او متابع دواړو مفرد دفعلة په وزن باندې وي نو دوي جمع به په وزن دفعلات راځي لكه جونات بيضات دا په اصل كې جونات او بيضات وو دتمرات دمتابعت په وجې واو او يا ته حركت وركړې شوې دي تمرات جمع ده دتمرة او دا قانون دي چې كله لكه ثلاثي مجرد وي او عين كلمه ئی دصحيح نه وي او مفرد ئی دفعل يافعلة په وزن باندې وي نو چې كله جمع جوړيږي نو عين كلمې ته به فتحه وركول ضروري وي لكه د رَحْمَةٌ نه رَحْمَاتٌ .

(۲) په مقابله دعين ناقص يعني دلفيف مقرون نه وي برابره خبره ده كه لام كلمه كې تعليل شوې وي لكه : روی قوی اصل كې روی لو قوی وو ځكه لام محل دتغير دې نوبل حرف نه دتعليل زيات مستحق دي كه چرته ددې په عين كلمه كې اعلال وكړو نو دوه تعليله به حقيقة پرله پسې راشي او دا ناجائز ده كه چرته لام كلمه كې تعليل نه وي لكه حي ددې دويمه يا اگرچې دماقبل دفتحې دوجې نه الف باندې بدل شوې نه دې ليكن په لام كلمه كې دموجودګئ دوجې نه دمعلل حكم لري كه چرته په عين كله كې تعليل وكړو نو پرله پسې دوه تعليله به جمع شي او دا ناجائز ده .

**اوم شرط** : دادې چې واو او یا عین کلمه دناقص حکماً (۱) هم نه وي احترازي مثال اِرْعَوَوَ اِرْمِيَيَ دلته اول واو او اوله یا په حکم دعین کلمه دناقص کې ده .

**اتم شرط**: دادې (۲) چه دواو اویانه مابعد مدّه نه وي داسې مدّه چه زائده وي اودهغې ثابت ساتل لازمي وي اودیوخاص معنی دحصول لپاره راوړلې شوي وي احترازي مثال سَوَادٌ بَيَاضٌ دلته الف مده لازمي ده اودلون معنی دحصول لپاره راوړلې شوي ده اوثابت ساتل ئې ضروري دي .

**نهم شرط** : دادې چې دواو او یا نه مابعد حرف دتثنیه نه وي احترازي مثال عَصَيَانِ رَحَيَانِ عَصَوَيْنِ رَحَيَيْنِ دَعَوَا رَمَيَا .

**لسم شرط** : دادې چې واو او یا نه پس الف دجمع مؤنث نه وي احترازي مثال عَصَوَاتٌ رَحَيَاتٌ دلته واو او یا نه بعد الف دجمع مؤنث دې .

**یولسم شرط** : دادې چې واو او یانه بعد به یائی مشدده (۳) وي احترازي مثال : عَصَوِيٌّ رَحَوِيٌّ دایادنسبت ده عَصَوِيَّةٌ دا یائی مصدریه ده .

**دولسم شرط** : دادې چې واو او یانه مابعد نون تاکیدنه (۴) وي احترازي مثال اِرْعَوَنَّ اِخْشَيَنَّ اِرْعَوَنْ اِخْشَيَنْ دلته نون تاکید ثقیله او خفیفه دې .

**دیارلسم شرط** : دادې چې هغه کلمه چې واو او یا په کې وي دفَعَلَانٌ په وزن نه وي (په فتحه دفااوعین) احترازي مثال جَوَلَانٌ حَيَوَانٌ داد فَعَلَانٌ په وزن دي .

---

(۱) حکما عین کلمه دناقص مطلب دادې چې لام کلمه دناقص په تکرار سره وي څکه اول حرف دوسط دوجې نه په منزل دعین کلمه شو او دویم حرف دمؤخرکیدلو په وجې په منزل دلام کلمه شو لکه : ارعوو اول واو اگر چې حقیقت کې لام کلمه کې ده لیکن دتکرار دلام دوجې نه هغه واو په وسط کې دراتلو په سبب په حکم دعین کلمه کې شو وس که چرته عین کلمه کې تعلیل وکړو نو دوه حروف اصلیه کې چې حکماً (اصله دي) به دوه تعلیله پرله پسې راشي او دا ناجائز ده .

(۲) مده زائده نه مُراد هغه حرف دې چې نه خودکلمې جزء وي او نه په یوخاص معنی باندې دلالت کوي لکه جواد . طویل . غیور . که په دې کې تعلیل وشي نو دا خبره په لازمه شي چې مده خودباقي وي او دېنه ماقبل حرکت چې هغه دېنه مده جوړه کړیده هغه دې حذف شي ولې که داسې نشي نو بیا به قانون جاري کیږي لکه : تدعون ترمین اصل کې تدعوون ترميين وؤ دلته واو او یا دې مده زائده نه ماقبل دې کوم چې دمعنی دجمعیت او تانیث فائده ورکوي .

(۳) یائی مشدده عام ده که یائی مصدریه وي په دې کې تعلیل وشي نو دیانه ماقبل چې کومه مطلوبه کسره ده هغه به ختمه شي . فائده یائی مشدده په زیادت دتاکلمه دمصدر په معنی کولو لپاره راځي لکه فاعلیه (دفاعل کیدل) .

(۴) که چرته پدې کې تعلیل وکړو نو دنون تاکید ماقبل فتحه چې په ځلور صیغو کې لازم وي په خپل حال باقي نه پاتې کیږي او خلاف وضع نه لازمیږي .

**څوارلسم شرط** : دادې چې کومه کلمه کې واو اويا وي په وزن د **فَعَلَى** (بفتح فاوعين) به نه وي احترازي مثال **صَوَرَى حَيَدَى** (١) داد **فَعَلَى** په وزن دي .

**پنځلسم شرط** : دادې چې هغه کلمه چې واو او ياپه کې وي دداسې کلمې سره هم معنى نه وي چې په هغى کې تعليل نشي کيدلې احترازي مثال **عَوِرَ عَيِنَ** (٢) په معنى د **اِعْوَرَّا واِعْيَنَّ** سره اوپه دې کې دواو او يا ماقبل ساکن داعلال نه مانع دې .

**شپاړسم شرط** : دادې چې واو او ياپه مقابله (٣) دعين کلمه دملحق کې نه وي احترازي مثال **قَوَاْوُلٌ بَيَعُوْعٌ** ملحق د **قَرَبُوْسٌ** .

**اولسم شرط** : دادې چې واو او ياپه مقابله دعين کلمه دحرف صحيح (۴) په بدل کې نه وي احترازي مثال **شَيَرَ** اصل کې **شَجَرَ** وؤ يا بدل ده دجيم نه .

**اتلسم شرط** : دادې چې واو او يا دفعل په عين (۵) کلمه کې نه وي داسې فعل چې غيرمتصرف وي احترازي مثال **قَوُلَ بَيُعَ** چې دعين کلمې په مقابل کې دې اتفاقي مثال دفعل **قَوُلَ بَيُعَ رَمَىَ دَعَوَ** دېنه **قَالَ بَاعَ دعَارَمَى** جوړ شو اسم کې **بَوَبٌ نَيَبٌ عَصَوٌ رَحَيٌ** نه **بَابٌ نَابٌ عَصَارَحى** جوړ شو .

---

(١) دفعلان اوفعلى وزن کې دتعليل نه کولو وجې داده چې په دې دواړو اوازنو کې حرکت معنى لازم دې لهذا لفظ يې هم متحرک ساتل پکار دي چې په حرکت معنى باندې دلالت وکړي باقي لفظ دموتانٌ باوجود ددېنه چې معنوي سکون دې په کې او بياهم پکې تعليل نه کيږي نو وجه داده چې دا په خپل نقيض حيوان باندې محمدل دې دجولان معنى ده گيرچاپيره تاويدل . حيدى معنى ده په تکبر سره تلل . صورى دابونوم دې .

(٢) سوال : عورعين چې داعور اواعين په معنى سره دې، دې کې تعليل کوي ددې عکس ولې نکوي حالانکې مزيد فرع او مجرد اصل دې او اصل تابع دفرع نه وي . جواب : الوان او عيوب اکثر دباب افعلال افعيلال نه راځي او داپدې کې اصل دې باقي بلوبونه اگر چې مجرد ولې نه وي پدې معنى کې ددې بابونو فروع دې .

(٣) واو او ياکه په لام کلمه دملحق کې وي نو قانون به جاري کيږي لکه قلسى تقلسى ملحق دې ددحرج تدحرج اصل کې قلسو تقلسو ؤ .

(۴) واو او ياکه چرته په لام کلمه کې دحرف صحيح نه بدل شوې وي نو قانون به جاري کيږي ځکه لام کلمه محل دتغير دې لکه دسها اصل کې دسس ؤ آخري سين بدل شو په باندې نو دسى شو بيا دغه قانون سره دسها شو .

(۵) واو او ياکه په لام کلمه دفعل غير متصرف کې وي نو قانون به جاري کيږي لکه مادعوه مارميه نه مادعاه مارماه شو .

**۴۵ - قانون : التقائی ساکنین بر دو قسم است علی حده وعلی غیر حده آنکه ساکن او مدّه یا یائی تصغیر وساکن ثاني مدغم ووحدة کلمه باشد وماسوی این علی غیر حده است وحکم علی حده خواندن ساکنین است درحالتِ وقف ونه خواندن ساکنین درحالتِ غیر وقف پس درحالتِ غیر وقف اگر ساکَنین اول مده یانون خفیفه باشد حذَف کرده مي شود اتفاقاً (۱) سوائی سه جادر اجوف یعنی مصدر باب افعال واستفعال واسم مفعول چرا که درین جا اختلاف است بعضی صرفیان اولی راحذف مي کنند وبعضی ثاني را واگرساکن اول مده یانون خفیفه نباشد حرکت داده شود ساکنی که در اخر کلمه است واگر در آخرنباشد اول راکسره زیراکه کسره در تحریک ساکن اصل است وغیر او سبب عارضه .**

ددې قانون نوم دې د التقائی ساکنین قانون :

**فائده** : التقائې ساکنین دېته وائي چې ځوحروف ساکنه داسې جمع شي چې په مابین کې ئې متحرک نه وي بیا دالتقائی ساکنین په دوه قسمه دي : ۱ - علی حده . ۲ - علی غیرحده :

**۱ - علي حده** : لپاره درې شرطونه دي :

**اول شرط** : دادې چه اول ساکن مده یا یائی تصغیر وي .

**دويم شرط** : دادې چه ساکن ثاني مدغم وي .

**دریم شرط** : دادې چې دواړه په یوه کلمه کې وي لکه اِحْمَارَّ اُحْمُوْرَّ خُوَیْصَّةٌ که په دې شرطونه کي یونه وي یادوه نه وي یادرې نه وي نوبه دې لحاظ د علی غیره اوه صورتونه جوړیږي .

**اول صورت** : چه صرف اول شرط نه وي باقي وي لکه يَخْصِّمُ .

**دويم صورت** : چه صرف دويم شرط نه وي باقي وي لکه قَالَنَ .

**دریم صورت** : چه صرف دریم شرط نه وي باقي وي لکه اِضْرِبُوْنَّ .

---

(۱) ساکن اول حذف کیږي په اتفاق دصرفیانوسره ماسوی ددرې ځایونو نه : ۱ - مصدر په باب افعال از اجوف . ۲ - مصدر باب استفعال از اجوف . ۳ - اسم مفعول ثلاثي مجرد از اجوف اقامة استقامة اصل کې اقوام او استقوام وو په قانون دیقال سره اقام استقام شو التقاء دساکنین راغله په مینځ دالفین کې امام اخفش په نزد اول ساکن به حذف کیږي دلیل : لانّ الثانیة علامةٌ والعلامة لاتحذف . او په نزد دبعض امام سیبویه . دویم : ساکن به حذف کیږي دلیل : لالها زائدة والزائدة احق بالحذف . مقول په اصل کې مقوول وو په قانون دیقول سره مقوول شو التقائی ساکنین راغله په مینځ د واوین کې یو حذف شو په اعتبار داختلاف بالانومقول شو .

**څلورم صورت** : چه اول او دويم شرط نه وي دريم وي لكه مَدَّ .

**پنځم صورت** : چه دويم اودريم شرط نه وي اول وي لكه اِضْرَبُوْالْقَوْمَ .

**شپږم صورت** : چه اول او دريم شرط نه وي دويم وي لكه لِتُدْعَوْنَّ .

**اوم صورت** : چه درې واړه شرطونه پكي نه وي لكه قُلِ الْحَقَّ .

| صورت اول | انتقائي شرط اول | لكه : يَخْصِمُ |
|---|---|---|
| صورت دوم | انتقائي شرط دوم | لكه : قَآلَنَ |
| صورت سوم | انتقائي شرط سوم | لكه : اِضْرِبُوْنَّ |
| صورت چهارم | انتقائي شرط اول دوم | لكه : مَدَّ |
| صورت پنجم | انتقائي شرط دوم وسوم | لكه : اِضْرَبُوْالْقَوْمَ |
| صورت ششم | انتقائي شرط اول وسوم | لكه : لِتُدْعَوْنَّ |
| صورت هفتم | انتقائي جميع شروط | لكه : قُلِ الْحَقَّ |

ددې قانون لپاره پنځه حكمونه دي : يو على حده او څلور دعلى غير حده لپاره :

**اول حكم** : دادې چې دواړه ساكنه به ثابت وئيل واجب وي مطلقاً يعنې كه حالت دوقف وي اوكه غير دوقف وي .

**شرط** : يې دادې چې التقائى ساكنين على حده وي احترازي مثال : قَآلَنَ دا على غيرحده دي اتفاقي مثال دحالت وقف : اِحْمَآرَّ. اُحْمُوْرَّ. حُوَيْصَّةٌ . دغيروقف مثال : اِحْمَآرَّ. اُحْمُوْرَّ. حُوَيْصَّةٌ.

**دويم حكم** : دادې چې دواړه ساكنه ثابت ساتل وئيل واجب دي .

**اول شرط**:دادې چه التقائې ساكنين على غيره حده وي احترازي مثال: اِحْمَآرَّ داعلى حده دي .

**دويم شرط** : دادې چه حالت دوقف (۱) وي احترازي: يَخِصِّمُ دلته حالت دوقف نشته . اتفاقي مثال : اَلرَّحِيْمُ .

---

(۱) مُراد محالت دوقف نه هغه سكون دې چې دوقف له وجې نه پيدا وي نه هغه چې دحروف جوازم وغيره نه پيدا وي ځكه هغه په حقيقت كې متحرك وي .

**دریم حکم** : دادې چې ساکن اول حذف ⁽۲⁾ کول واجب دي .

**اول شرط**: دادې چه التقائې ساکنین علی غیرحده وي احترازي مثال: اِحْمَارَّ داعلی حده دې .

**دویم شرط** : دادې چې حالت دوقف نه وي احترازي مثال : اَلرَّحِیْمُ دلته دویم ساکن په حالت دوقف کې دې .

**دریم شرط** : دادې چې ساکن اول مده یا نون حفیفه وي احترازي مثال مدد دلته اول ساکن نه مده ده نه نون خفیفه دې اتفاقي مثال : قَالَنَ نه قُلْنَ وئیل لَاتُهِیْنَنْ الْفَقِیْرَ نه لَاتُهِیْنَ الْفَقِیْرَ .

**څلورم حکم** : دادې چې کوم ساکن دکلمې په آخر کې وي هغه له حرکت ورکول واجب دي برابره خبره ده که په آخرکې ساکن اول وي اوکه ساکن دویم .

**اول شرط**: دادې چه التقائې ساکنین علی غیره حده وي احترازي مثال: اِحْمَارَّ . اُحْمُوْرَّ . خُوَیْصَّةٌ .

**دویم شرط** : دادې چې حالت دوقف نه وي احترازي مثال اَلرَّحِیْمُ .

**دریم شرط** : دادې چې ساکن اول مده یانون خفیفه نه وي احترازي مثال : قَالَنَ نه قُلْنَ وئیل لَاتُهِیْنَنْ الْفَقِیْرَ نه لَاتُهِیْنَ الْفَقِیْرَ .

---

⁽۲⁾ سوال : په کلام دعربو کې داسې مثالونه موجود دي چې دغه موجوده شرطونه پکې موجودي دي بیاهم قانون پکې نه دې جاري څه وجه ده؟ هغه دادې : ۱- اضربان . ۲- الحسن . ۳- لاهاالله . ۴- اي الله . ۵- حلقتا الطبان . جواب : اضربان : چرته چې نون ثقیله پس دالف نه وي نو هلته ابقاء دساکنین صحیح ده ددوه وجونه . اوله وجه : نون ثقیله په منزله دجزء دکلمې دې . دویمه وجه داچې الف کې خفت دې دغه وجه ده اضربون او اضربین نه وئیل کیږي اګرچې نون ثقیله دوارو کې برابر دې .لیکن واو اویاکې په مثل دالف خفت نشته هم دغه حکم داضربنان لیضربان او لاتضربان دې . الحسن : یعنی الحسن عندک (بمدهمزه وسکون لام) (آیا تلسره حسن شته ) چرته چې همزه داستفهام په همزه وصل مفتوح باندې داخل وي نو هلته ابقاء دساکنین صحیح ده چې دانشاء(استفهام) دخبر سره التباس رانشي بلکه دا همزه وصل په الف سره بدلیږي اصل کې ءءالحسن وؤ دویمه همزه الف سره بدله شوه نو آلحسن شو هم دغه حکم دایمن الله دې . لا ها الله : (بجر لفظ الله واثبات الف ها وسکون لام مدغم ) چرته چې ها دتنبیه په لفظ دالله باندې دحروف قسمیه محذوفه په عوض کې راشي نو هلته ابقاء دساکنین صحیح ده ځکه که الف حذف کوي نو لازمیږي حذف دعوض او معوض عنه او دا ممنوع ده دا په اصل کې لا والله وؤ حرف قسم حذف شو په عوض کې ها دتنبیه راغله او لازائده ده نو لاهالله شو . ای الله ( بکسر همزه وسکون یا ولام وجر لفظ الله ) چرته چې ای حرف ایجاب په لفظ الله باندې داخل شي دحروف قسم دحذف نه نو پس هلته هم ابقاء دساکنین صحیح ده که یاحذف کوي نو التباس راځي الا حرف استثناء سره او دغه شان دا التباس به هم راځي چې مکسور دلفظ الله نه دې او که دحرف ایجاب نه اصل کې ای والله دې داقام زید استفهام په جواب کې دې . خلقتا البطان : ( باثبات الف تثنیه وسکون لام ) حلقتا اصل کې حلقتان وؤ داضافت په وخت کې نون حذف شو . بطان (بکسربا) . مطلب داچې دعربو په قول خلقتا البطان ( معنی داچې دشتر دوارو حلقې ملاؤ شي دا یو متل دې چې دسخت مصیبت په وخت کې وئیلې کیږي) کې ابقائی ساکنین الف دتثنیه او لام تعریف کې صحیح ده سماعا اکن اول باقي ساتو چې مقصد فوت نه شي ځکه ددې نه مقصد په میدان دجنګ کې ملالصوت دې خلق خبر دار کولې شي . که چرته اول ساکن حذف کړو نو مقصد به باطل شي .

**څلورم شرط** : دادې چې يو ساکن به په آخر دکلمه کې وي احترازي مثال **يَخِصَّمُ** دلته کوم ساکن په آخر د کلمه کې نشته اتفاقي مثال چې اول ساکن اول په آخر د کلمه کې وي **قُلِ الْحَقَّ** چې دويم ساکن په آخر د کلمه کې وي لکه **لَمْ يَحْمَرَّ** اصل کې **لَمْ يَحْمَرِرْ** وو

**پنځم حکم** : دادې چې اول ساکن ته حرکت د کسرې ورکول واجب دي

**اول شرط** : دادې چې التقائې ساکنين على غيره حده وي احترازي مثال **اِحْمَارَّ**. **اُحْمُوْرَّ**.

**دويم شرط** : دادې چې حالت دوقف نه وي احترازي مثال **اَلرَّحِيْمْ**.

**دريم شرط** : دادې چې اول ساکن مده يانون خفيفه نه وي احترازي مثال : **قَالَنَّ . لَاتُهِيْنَنَّ الْفَقِيْرَ** نه **لَاتُهِيْنَ الْفَقِيْرَ**.

**څلورم شرط** : دادې چې يوساکن هم دکلمې په آخر کې رانشي احترازي مثال : **قُلِ الْحَقَّ** اتفاقي مثال : **يَخِصَّمُ** اصل کې **يختصم** ؤو په قانون د **خَصَّمَ يَخِصِّمُ** د ادغام په صورت کې خا او صاد اول ساکن شول اول ساکن خا ته مو کسره ورکړه **يَخِصِّمُ** شو وجه يې داده چې ساکن ته په حرکت ورکولو کې کسره اصل ده . چرته چې فتحه يا ضمه ورکولې کيږي نو دعارض له وجې نه لکه **لَمْ يَحْمَرَّ** کې دلته فتحه د اخف الحرکات په بناء باندې ورکړې شوې دي، **دَعَوُاللّٰهَ** دلته ضمه ځکه راغلې ده چې په واو محذوفه دجمع باندې دلالت وکړي

## ۴۶ – قانون : هر واو غير مكسور كه در ماضي ثلاثي مجرد اجوف الف شده بيفتد فاكلمه اورا حركت ضمه مي دهند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د **قُلْنَ** او **طُلْنَ** قانون : دې لپاره يو حکم او پنځه شرطونه دي .

**اول حکم** : يې دادې چې دماضي معلوم فاکلمې ته حرکت دضمه ورکول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې واو غير مکسور وي احترازي مثال **خِفْتَ** دلته مکسور دې .

**دويم شرط** : دادې چې ماضي معلوم وي احترازي مثال **يَقُوْلُ** دا مضارع معلوم دې .

**دريم شرط** : دادې چې باب دثلاثي مجرد وي احترازي مثال : **اَقْوَمْنَ** دا ثلاثي مزيد دې .

**څلورم شرط** : دادې چې اجوف وي احترازي مثال **دَعَتْ** اصل کې **دَعَوَتْ** وو دلته په ناقص کې دې

**پنځم شرط** : دادې چې واو الف شي بيا ساقط شي احترازي مثال : قَالَ اصل قَوَلَ وو واو الف شوخوساقط نه دې اتفاقي مثال : قُلْنَ طُلْنَ اصل کې قَوَلْنَ او طَوُلْنَ وو په قانون سره قَالَ قَالْنَ طُلْنَ شو په قانون دالتقائې ساکنين قَلْنَ طَلْنَ شو په همدغه قانون سره قُلْنَ او طُلْنَ شو .

**فائده** : قُلْنَ ماضي معلوم اصل کې قَوَلْنَ وو . قُلْنَ ماضي مجهول اصل کې قُوِلْنَ وو قُلْنَ امر حاضر معلوم اصل کې اُقْوُلْنَ وو .

## ۴۷- قانون : هر واو مکسور ويائی مطلقاً که درماضي معلوم ثلاثي مجرد اجوف الف شده بيفتد فاکلمه او را حرکت کره مي دهند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د خِفْنَ او بِعْنَ قانون : دې لپاره يو حکم دې او پنځه شرطونه دي .

**حکم** : يې دادې چې په ماضي معلوم کې فاکلمې ته حرکت د کسرې ورکول واجب دي .

**اول شرط** : يې دادې چې واو مکسور وي او يا مطلقاً وي احترازي مثال قَوَلَ طَوُلَ دلته مکسور نه دي .

**دويم شرط** : دادې چې ماضي معلوم کې وي احترازي مثال : يَخْوَفُ دلته مضارع کې دي .

**دريم شرط** : دادې چې باب دثلاثي مجرد وي احترازي مثال : اَطَرْنَ اصل کې اَطْيَرْنَ وؤ .

**څلورم شرط** : دادې چې اجوف کې وي احترازي مثال رَمَتْ اصل کې رَمَيَتْ وو دا ناقص دي .

**پنځم شرط** : دادې چې واو يا الف شي او ساقط شي احترازي مثال خَافَ بَاعَ اصل کې خَوِفَ او بَيِعَ وو واو او الف شول خوساقط نه شول . اتفاقي مثال دواو . خِفْنَ اصل کې خَوِفْنَ وو . ديا مفتوح مثال بِعْنَ دمکسورمثال طِبْنَ دمضموم مثال . هِئْنَ اصل کې بَيَعْنَ طَيِبْنَ هَيُئْنَ وو دمکسور العين والاقيد عام دې برابره خبره ده که کسره په عين دماضي باندې وي لکه خَوِفَ يَخْوَفُ ياپه عين دمضارع باندې وي لکه طَوَحَ يَطْوِحُ لکه طِحْنَ دا په اصل کې طَوَحْنَ وو دباب د ضَرَبَ يَضْرِبُ نه نو در الاصل والله اعلم

**۴۸ - قانون : هر واو او یا مضموم یا مکسور متوسط یا درحکم متوسط که در اصل سلامت نمانده باشد درناقص ثلاثي مجرد مطلقاً در فعل متصرف یا در متعلقات وی بجز فُعِلَ حقیقي وحکمي از اجوف وتفعلین از ناقص حرکت ان واو ویا نقل کرده بماقبَل مي دهند وجوباً بشرطیکه آن واو ویا بدل از همزه ضمه و کسره آنها منقول از همزه وهم وزن فعل متعارف نباشد وماقبل انها مفتوح ومده ولین زائده نباشد ودر فعل از اجوف نقل حرکت وحذف و اشمام وی جائز است ودر تفعلین از ناقص نقل حرکت واثباتِ وي جائز است :**

ددې قانون نوم دې د **يَقُوْلُ** او **يَبِيْعُ** قانون . ددې لپاره درې حکمونه دي اول حکم لپاره دولس (۱۲) شرطونه دي درې وجودي او نهه عدمي .

**اول حکم** : دادې چې نقل کول دحرکت دواو او یاماقبل ته دا واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې واو او یا مضموم او مکسور وي احترازي مثال **يَقُوْلُ يَبِيْعُ** دلته مفتوح دي .

**دویم شرط** : دادې چې واو او یا په مینځ کې وي په حکم دمتوسط کې وي احترازي مثال **يَدْعُوْ يَرْمِيْ** دلته دلام کلمه په مقابل کې دې .

**دریم شرط** : دادې چې واو او یا بـه فعـل متـصرف یـا دفعـل متـصرف (۱) دمتعلقاتونه وي احترازي مثال **قَوْلُ بَيْعُ اَدْوُرْ اَعْيُنٌ** دلته نه فعل متصرف کې دي او نه دده متعلقاتو کې .

**څلورم شرط** : دادې چې واو او یا په اصل (ماضي معلوم) کې سالم نه دي احترازي مثال : **يَعْوِرُ يَصْيِدُ** ددې اصل عَوِرَ او صَيِدَ دي دلته واو او یا سالم دي .

**پنځم شرط** : دادې چې فعل حقیقي (۲) یاحکمي اجوف کې نه وي احترازي مثال **قُوِلَ بُيِعَ** دا فعل حقیقي یا حکمي دي . **اُقْوِدَ اُخْتُيِرَ** دا **فُعِلَ** حقیقي دي .

---

(۱) افعال متصرفه نه مُراد هغه افعال دي چې واحد تثنیه جمع ټې راځي لکه ماضي مضارع امر متعلقاتو نه مُراد شپږ اسماء مشتقه دي او مصادر دي یعنې : ۱ - اسم فاعل . ۲ - اسم مفعول . ۳ - صفت مشبه . ۴ - اسم تفضیل . ۵ - اسم ظرف . ٦ - اسم آله .

(۲) فعل حقیقي مطلب دادې چې ابتداء نه دفعل په وزن وي لکه قول بیع فعل حکم دا مطلب چې څو حروف ابتدائیه حذف شي دهغې نه پس وزن دفعل باقي پاتې شي لکه : انقود اختیر چې ان . اخ . حذف شي قود تیر وزن دفعل باقي پاتي کیږي .

**شپږم شرط** : دادې چې تَفْعُلِيْنَ ناقص کې نه وي احترازي مثال تَـدْعُوِيْنَ تُنْهِيُيْنَ دادناقص صيغې دي .

**اووم شرط** : دادې چې واو او يا دهمزې نه بدل شوي نه وي احترازي مثال سُوِلَ مُسْتَهْزِيُوْنَ اصل کې سُئِلَ او مُسْتَهْزِءُوْنَ وؤ .

**اتم شرط** : دادې چې دواو او يا حرکت دهمزې نه منقول نه وي احترازي مثال يَسُوْ يَجِيُ اصل کې يَسُوْءُ او يَجِيْءُ وؤ .

**نهم شرط** : دادې چې واو او يا داسم په يوداسې کلمه کې نه وي چې دقانون جاري کيدلو په وجه ديومشهور فعل هم وزن (۱) شي احترازي مثال تَحْوِيْلٌ تَمِيْيْز .

**لسم شرط** : دادې چې واو او يا نه ماقبل مفتوح نه وي احترازي مثال قَوِيَ حَيِيَ دلته ماقبل مفتوح دې .

**يولسم شرط** : دادې چې واو اويا نه ماقبل مده زائده نه وي احترازي مثال قَاوَلَ بَايَعَ دلته ماقبل مده ده .

**دولسم شرط** : دادې چې واو او يا نه ماقبل لين زائده نه وي احترازي مثال مُقَيْوِلٌ مُبَيْيِعٌ دلته ماقبل لين زائده دې اتفاقي مثال يَقْوُلُ يَبْيَعُ نه يَقُوْلُ يَبِيْعُ .

**دويم حکم** : دادې چې نقل حرکت، حذف، اشمام (۲) درې واړه جائز دي، دې لپاره درې شرطونه دي يو وجودي او دوه عدمي .

**اول شرط** : دادې چې فعل حقيقي ياحکمي اجوف کې وي احترازي مثال قَوَلَ بَيَعَ دلته نه فعل حقيقي شته نه حکمي

**دويم شرط** : دادې چې واو او يا اصل (ماضي معلوم) کې سالم نه وي احترازي مثال عُوِرَ صُيِدَ ددې اصل عَوِرَ صَيِدَ کې سالم دي

(۱) تحويل تمييز دا دواړه دباب تفعيل مصدرونه دي په قانون ديقول باندې تحويل تمييز شو . دېنه پس په قانون دميعاد سره تحييل شو بيا دوه ياګانو کې التقائی ساکنين راغله اول دمده والي په وجه حذف شوه نو تحييل تمييز شو دا اوس دمشهور فعل تبيع په وزن شول دې وجې نه په دې کې ديقول قانون نه جاري کيږي .

(۲) اشمام دېته وايي چې کسره مائله کړي په طرف دضمه او ياساکنه مائله کړي په طرف دواو . اشمام به دقيل او بيع په اول حرف کې کيږي او داختير او انقياد په دريم حرف کې به کيږي .

**دریم شرط** : دادې چې واو اویا دهمزې په بدل کې نه وي احترازي مثال سُوِلَ. مُسْتَهْزِيُوْنَ اصل کې سُئِلَ مُسْتَهْزِءُوْنَ وو. اتفاقي مثال دنقل حرکت قُوِلَ بُيِعَ نه قِوْلَ بِيْعَ حذف حرکت قُوْلَ بُيْعَ اُلْقُوِدَ اُخْتُيِرَ پدې باندې قیاس کړئ. باقي اشمام اداکول دقاریانو صاحبانو نه زده کړئ

**فائده** : په دویم حکم کې داشرط دې چې ماضي معلوم کې تعلیل شوې وي دغه وجه ده چې اُعْتُوِرَ ماضي مجهول کې اعلال نه کیږي ځکه چې ددې په معلوم کې اعلال نه دې شوې.

**دریم حکم** : دادې چې نقل (۱) دحرکت او اثبات دحرکت دواړه جائز دي.

**شرط** : یې دادې چې تَفْعُلِيْنَ ناقص نه وي احترازي مثال: تَقُوْلِيْنَ دا ناقص نه دې اتفاقي مثال داثبات تَدْعُوِيْنَ تَنْهُيِيْنَ اوچې نقل دحرکت وکړي نوتَدْعُوِيْنَ او تَنْهِيِيْنَ ونیل هم جائزدي پس دتعلیل نه به تَدْعِيْنَ او تَنْهِيْنَ شي.

**فائده** : تَفْعُلِيْنَ ناقص نه د تَفْعُلِيْنَ وزن مراد دې صیغه مراد نه ده.

## ۴۹- قانون : هر واو ویا متوسط مفتوح که دراصل سلامت نمانده باشد درفعل متصرف یامتعلقات وی سوائی کلمه اسم که بروزن اَفْعَلُ ماقبلش حرف صحیح ساکن مظهرباشدفتحش رانقل کرده به ماقبل داده آن رابه الف بدل کنندوجوباً. بشرطیکه آن کلمه ملحق وبمعنی لون وعین وبین الساکنین حقیقتاً یاحکماً نباشد :

ددې قانون نوم دې دیُقَالُ یُبَاعُ قانون. ددې لپاره یو حکم او دولس(۱۲) شرطونه دي.

**حکم** : یې دادې چې حرکت د واو اویا به نقل شي ماقبل ته واو او یا په الف سره بدلول واجب دي

**اول شرط** : دادې چې واو اویا متوسطه یعنې دعین کلمې په مقابله کې وي احترازي مثال لَن يَدْعُوَلَن يَرْمِيَ دلته دلام کلمه په مقابله کې دي

**دویم شرط** : دادې چې واو اویا مفتوحه وي احترازي مثال يَقُوْلُ يَبِيْعُ دلته مفتوحه نه دې.

(۱) دحرکه متوسط مثال تاعوون رامیون نه تاعون رامون

**هريم شرط** : دادې چې نه فعل متصرف وي او نه ئې متعلقات وي . احترازي مثال **مَاأَقْوَلَهُ مَا أَبْيَعَهُ** دانه فعل متصرف دې او نه دمتعلقاتونه دې .

**خلورم شرط** : دادې چې دواو اويانه ماقبل حرف صحيح وي احترازي مثال **قَاوَلَ بَايَعَ** دلته ضد دصحيح دې چې حرف علت دې .

**پنځم شرط** : دادې چې واو او يانه ماقبل حرف صحيح ساكن وي احترازي مثال **قَوَلَ بَيَعَ** دلته ماقبل مفتوح دې .

**شپږم شرط** : دادې چې مظهر وي احترازي مثال **قَوَّلَ بَيَّعَ** دلته مدغم دې .

**اووم شرط** : دادې چې واو او يا په اصل (ماضي معلوم) كې سلامت نه وي احترازي مثال **يُعْوَرُ يُصْيَدُ** اصل كې سلامت دې .

**اتم شرط** : دادې چې واو او يا په اسم كې د **أَفْعَلُ** په وزن باندې نه وي احترازي مثال **أَقْوَلُ أَبْيَعُ** دا اسم تفضيل دې .

**نهم شرط** : دادې چې واو او يا په ملحق دكلمې كې نه وي احترازي مثال **جَهْوَرَ هَرْيَفَ** چې دا ملحق دې د **دَحْرَجَ** اصل كې **جَهْوَرَ شَرْيَفَ** وؤ واو او يا دلام نه قبل دالحاق لپاره راوړي شوي دي .

**لسم شرط** : دادې چې واو او يا به داسې كلمه كې نه وي چې دعيب په معنى كې وي احترازي مثال **إِعْوَرَّ إِصْيَدَّ** .

**يولسم شرط** : دادې چې واو اويا په داسې كلمه كې نه وي چې درنګ معنى په كې موجوده وي احترازي مثال **إِسْوَدَّ إِبْيَضَّ** .

**دولسم شرط** : دادې چې واو اويا ددوه ساكنينو(۱) په مينځ كې حقيقتاً ياحكماً نه وي احترازي مثال **مِقْوَالٌ مِقْوَلَةٌ** . اتفاقي مثال د **يُقْوَلُ يُبْيَعُ** نه **يُقَالُ يُبَاعُ** د **مَقْوَلٌ مَهْيَبٌ** نه **مَقَالٌ مَهَابٌ** باقي **مَشْوَرَةٌ مَرْيَمُ** شاذ دي .

---

(۱) سوال : تاسو اووئيل چې بين الساكنين مانع دې داعلال نه موږ به تاسو ته څه داسې مثالونه وښايو چې بين الساكنين به وي او قانون به په كې جاري شوي وي لكه اقوام استقوم ؟ جواب : دا مصادر دې او دا قانون دې چې مصادرو كې اعلال دفعل تابع وي په اقام او استقام كې اعلال شوي دي لهذا مصادرو كې به يې هم كيږي . سوال : يقلن تقلن اصل كې يقولن او تقولن وؤ مصادر نه دي بلوجود ددينه چې بين الساكنين دي حكم دقانون په كې جاري دې ؟ جواب : دلته سكون دلام عارضي دې نو ګويا يالام په حقيقت كې متحرك دي .

## ۵۰- قانون : هر واو ویا که واقع شود بعد از الف فاعل ودر اصل سلامت نمانده باشد یا اصل او نباشد آن واؤ ویا را به همزه بدل کنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د قَائِلٌ او بَايِعٌ قانون . دې لپاره یوحکم او درې شرطونه دي

**حکم** : يې دادې چې واو اويا په همزه سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې واو او يا دالف نه بعد وي احترازي مثال قَوْلٌ بَيْعٌ .

**دويم شرط** : دادې چې واو او يا دالف دفَاعِلٌ نه بعد وي احترازي مثال مَقَاوَلَ مَبَايَعَ دلته دالف د مَفَاعِلُ نه بعد دې .

**دريم شرط** : دادې چې واو اويا په اصل کې سلامت نه وي يا ورلره دسره اصل نه وي احترازي مثال نه قَائِلٌ بَائِعٌ ددې اصل قَالَ او بَاعَ دې چې واو او يا په کې سالم نه دي اوچه اصل (فعل) نې نه وي مثال يې غَاوِطٌ سَايِفٌ چې اول د غَوْطٌ نه مشتق دې (بنكته زمكه) دويم د سَيْفٌ نه بمعنى صاحب شمشير .

## ۵۱- قانون : هر واو که واقع شود در مقابله عین کلمه مصدر یاجمع ودر فعل و واحد بسلامت نمانده باشد ماقبلش مکسور آن واو را به یابدل کنند وجوباً بشرطیکه لام کلمه وی معلل نباشد :

ددې قانون نوم دې د قِيَامٌ ثِيَابٌ او حِيَاضٌ قانون . دې لپاره يوحكم دې او دشرطونو درې جماعتونه دي اول جماعت لپاره څلور او دويم جماعت لپاره هم څلور او دريم جماعت لپاره شپږ شرطونه دي :

**حکم** : يې دادې چې واو په ياسره بدلول واجب دي .

**داولني جماعت اول شرط** : دادې چې واو دعين کلمه په مقابله کې وي احترازي مثال وَعْدٌ دلته دفاكلمه په مقابله کې دي .

**دويم شرط** : دادې چې صيغه دمصدر وي (۱) احترازي مثال قِوَالٌ دا جمع مكسر ده .

**دريم شرط** : دادې چې دغه واو په فعل کې سالم نه وي احترازي مثال قِوَامٌ دا مصدر دې دباب مفاعله او فعل نې قَاوَمَ يُقَاوِمُ راخي واو په کې سالم دي

(۱) صيغه دمصدر عامه ده خواه دفعل په وزن وي يا افعال يا انفعال په وزن باندې وي .

**خلورم شرط** : دادي چې دې واو نـه ماقبـل مكسور وي احتـرازي مثـال : **سُوَالٌ** دلتـه ماقبـل مفتوح دې اتفاقي مثال **قِوَامٌ** نه **قِيَامٌ** دا مصدر دې د **قَامَ يَقُوْمُ** مجرد .

**ددويم جماعت اول شرط**: دادې چې واوپه مقابله کې دعين کلمه کې وي احترازي مثال **وَعْدٌ**

**دويم شرط** : دادې چې صيغه دجمعې وي احترازي مثال **قِوَامٌ** دا مصدر دې دباب مفاعله .

**دريم شرط** : دادې چې واو په واحد کې سالم نه وي احترازي مثال **عِوَارٌ** ددې مفرد **عَاوِرَ** دې واو په کې سالم دې .

**خلور شرط** : دادې چې ددې واو نـه ماقبـل مکسـور وي احتـرازي مثـال **قَوَلَةٌ** دلتـه مفتـوح دې اتفاقي مثال **قِوَالٌ** نه **قِيَالٌ** ددې واحد **قَائِلٌ** دې اصل کې **قَاوِلٌ** دې .

**ددريم جماعت اول شرط** : چې واو دعين په مقابله کې وي احترازي مثال **وَعْدٌ** .

**دويم شرط** : دادې چې صيغه دجمع وي احترازي مثال **قِوَامٌ** دا مصدر دې .

**دريم شرط** : دادې چې دا واو په واحد کې ساکن وي احترازي مثال **طِوَالٌ** ددې مفرد **طَوِيْلٌ** دې واو په واحد کې ساکن نه دې .

**خلورم شرط** : دادې چې دغه واو په جمع کې دالف نه مخکې وي احترازي مثال **كِوَزَةٌ** ددې مفرد **كُوْزَةٌ** دې دلته واو د (زا) نه مخکې دې نه دالف نه .

**پنځم شرط** : دادې چې واو نه ماقبل مکسور وي احترازي مثال **أَقْوَالٌ** دا جمع د **قَوْلٌ** ده دلته ماقبل ساکن دې

**شپږم شرط** : دادې چې په لام کلمه کې ئې قـانون نـه وي جـاري شـوې احتـرازي مثـال **رِوَاءٌ** اصـل کې **رِوَايٌ** وو مفرد ئې **رُوْيَانٌ** (بسکون واو) دې اتفـاقي مثـال **حِوَاضٌ رِوَاضٌ** نـه **حِيَاضٌ رِيَاضٌ** ددې مفرد **حَوْضٌ رَوْضٌ** دې

## ۵۲ - قانون : هر واو ويا كه جمع شوند دريک كلمه ياحكم وی سوائی كلمه اسم بروزنِ افعل اول ايشان ساكن لازم غير بدل باشد آن واو راياكرده دريا ادغام مي كنند وجوباً سوائی واو عين كلمه بعد از يائی تصغير درمكبر سلامت باشد چراكه آن واو رابيا بدل كرده شود جوازاً :

ددې قانون نوم دې د **قُوَيِّلٌ** او **قُوَيِّلَةٌ** قانون . دې قانون لپاره دوه حكمه دي دهر حكم لپاره اوه شرطونه دي .

**اول حكم** : دادې چې واو به ياشي او يابه په ياكې مدغمه شي وجوباً .

**اول شرط** : دادې چې واو اوياجمع وي احترازي مثال **وَشْيٌ** دلته په مينځ كې حرف شين دې .

**دويم شرط** : دادې چې واو او ياپه يوه كلمه كې جمع وي حقيقتاً وي او كه حكماً(۱) وي احترازي مثال **اَبُوْ يَعْقُوْبَ** دلته جدا جدا كلمه كې دي .

**دريم شرط** : دادې چې واو او يا كې كوم يو اول وي هغه ساكن وي احترازي مثال **قُوَيْلِي** دلته دويم ساكن دې .

**څلورم شرط** : دادې چې سكون يې هم لازمي وي مثال **قَوْيَ** اصل كې **قَوِيَ** وو ددې سكون عارضي دې په قانون جوازي دحلقي العين سره .

**پنځم شرط** : دادې چې دا صيغه په اسم كې د **اَفْعَلُ** په وزن باندې نه وي احترازي مثال **اَيْوَمُ** داپه اسم كې د **اَفْعَلُ** په وزن دې .

**شپږم شرط** : دادې چې واو اويا كې چې كوم اول وي هغه دچانه بدل نه وي احترازي مثال **بُوْيِعَ** اصل كې **بَايَعَ** (۲) وو . واو بدل دې دالف نه په قانون د **ضُوْرِبَ مَضَارِيْبُ** سره .

**اووم شرط** : دادې چې درې صفتونو والاواو به هم نه وي . ۱ - واو په مقابله دعين كلمه كې

---

(۱) حكماً ديوې كلمې مثال مسلمي اصل كې مسلمون وؤ يائی متكلم طرفته داضافت دوجې نه نون ساقط شو نو مسلموي شو دا په حكم ديو كلمه كې ده ځكه ضمير مجرور له وجې دشدت اتصال نه گويا جزء دكلمې دې دغه قانون سره مسلمي شو پس ددېنه په قانون ددعی سره مسلمي شو .

(۲) بويع (ماضي مجهول) كې واو دبايع (ماضي معلوم) الف نه بدل كې راغلې دې كه په دې كې تعليل وكړو نو التباس به راشي دباب تفعيل دماضي مجهول سره . فائده : دملاميو واو به ديدعی په قانون سره ياكړو بيادېنه پس دمتجانسين په قانون سره به يا په يا كې مدغم شي ملامي به وئيلې كيږي په ملاميو كې يا بدله ده دالف نه واحد ئې مدعاء راځي دا صيغه داسم آله ده .

۲- واو بعد ازیائی تصغیر ۳- داسې واو چې خپل مکبر سالم وي احترازي مثال مُقَيْوِلٌ مُقَيْوِلَةٌ دلته واو په مقابله دعین کلمه کې دې پس دیائی تصغیرنه دې مکبرکې سالم دې خکه مکبرئې راخي مِقْوَلٌ مِقْوَلَةٌ اتفاقي مثال قُوَيْوِلٌ قُوَيْوِلَةٌ نه قُوَيِّلٌ قُوَيِّلَةٌ ددې مکبر راخي قَائِلٌ قَائِلَةٌ دلته واو سالم نه دې

**دویم حکم :** دادې چې واو بدل شي په یا سره او یا په یا کې مدغمه کړې شي جوازاً

**اول شرط :** دادې چې واو اویا جمع وي احترازي مثال : وَشْيٌ

**دویم شرط :** دادې چې واو او یاپه یوه کلمه کې وي احترازي مثال : اَبُوْ يَعْقُوْبَ

**دریم شرط :** دادې چې دواړو کې اول ساکن وي احترازي مثال : قُوَيْلٌ

**خلورم شرط :** دادې چې داول سکون لازمي وي عارضي نه وي احترازي مثال : قُوْيَ

**پنځم شرط :** دادې چې درې صفتونووالاوي ۱- مقابله عین ۲- بعد یاء تصغیر ۳- دا واو په خپل مکبرکې سالم وي احترازي مثال : قُوَيْوِلٌ مُقَيْوِلٌ دا تصغیردې دمَقَالٌ اسم ظرف او قَائِلٌ اسم فاعل چرته چې واو سالم نه دې

**شپږم شرط :** دادې چې داصیغه په اسم کې داَفْعَلُ په وزن باندې نه وي احترازي مثال : اَيْوَمُ

**اووم شرط :** دادې چې واو او یا دچانه بدل نه وي احترازي مثال : بُوْيِعَ اتفاقي مثال مُقَيْوِلٌ نه مُقَيِّلٌ دا تصغیر دې د مِقْوَلٌ اسم اله

**فائده :** امام فراء په خپل کتاب «الایام واللیالي» کې فرمایي چې د قُوَيِّلٌ قاعده کلیه ده مګر درې الفاظ نادر دې اول ضَيْوَنٌ په معنی (ګربه نر) دویم حَيْوَةٌ په معنی (دسړي نوم) دریم حَيْوَانٌ (دعربو دیوې قبیلې نوم دې)

## ۵۳- قانون : هر حرف علت که بباعثی بیفتد بوقت دور شدن آن باز آید وجوباً :

ددې قانون نوم دې د قُوْلَنَّ قانون دې لپاره یو حکم او دوه شرطونه دي

**حکم :** یې دادې چه دحذف شوي حرف علت واپس کول واجب دي

**اول شرط :** دادې چه حرف علت دځه وجې نه ساقط شوې وی احترازي مثال قَالَ دلته حرف علت ساقط نه دي بلکه په الف بدل دي

**دويم شرط** : دادې چه دحرف علت دساقطيدلو علت لري شي احترازي مثال قُلْنَ دلته دساقطيدلو علت لري شوې نه دې اتفاقي مثال قُلْ دلته واو دالتقاء ساكنين له وجې نه حذف شوې دې كله چه په آخركې نون ثقيله لاحق شو نو لام متحرک شودحذف سبب ختم شو نو واو واپس راغلو قُوْلَنَّ شو .

## ۵۴- قانون : هر واو ويا كه واقع شود بعد از الف زائده بر طرف يا در حكم آن رابه همزه بدل مي كنند وجوبا :

ددې قانون نوم دې د دُعَاءٌ قانون دې لپاره يو حكم دې او درې شرطونه دې .

**حكم** : يې دادې چه واو او ياء په همزه سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چه واو او يا پس دالف نه واقع وي احترازي مثال وَاعِدٌ يَاسِرٌ دلته واو او يا الف نه مخكې دي .

**دويم شرط** : دادې چه الف زائده وي احترازي مثال ثَايٌ رَايٌ دلته واو او يا نه ماقبل الف اصلي دې اصل كې ثَوَيٌ (بمعني مكان گوسفند) رَوَيٌ (بمعني نيزه) وؤ دي دواړوكې عين كلمه خلاف القياس په الف بدل شوې ده وجه داده چه قياس داتقاضاكوي چه لام كلمه كې دې اعلال وشي .

**دويم شرط** : دادې چې واو په آخركې وي حقيقة وي اوكه حكماً وي احترازي مثال شَقَاوَةٌ هِدَايَةٌ دلته واو اويا نه حقيقة په آخركې دي (۱) اونه حكماً ، دحقيقة اتفاقي مثال : دُعَاءٌ مَرْمَاءٌ دحكما مثال : مَرْمَايَانِ نه مَدْعَاءَانِ مَرْمَاءَانِ .

## ۵۵- قانون : هر واو كه واقع شود مقابله لام كلمه ماقبل او مكسورباشدآن راييا بدل كنند وجوبا :

ددې قانون نوم دې د دُعِيَ قانون دې لپاره يوحكم دې او درې شرطونه دې .

**حكم** : يې دادې چه واو به يا سره بدلول واجب وي

(۱) حقيقة دا مطلب چې واو او يابالكل په اخر كې وي بعد ترنه بل حرف نه وي لكه دُعاوٌ رواي . حكما دا مطلب چې واو او يائه بعد داسې حروف وي چې دكلمې بناء ددوي نه بغير هم صحيح وي يعنې كلمه دوي نه بغير هم مستعمليږي دتثنيه او جمع زيادت هم دغه حكم كې دې پس دې قيد سره شقاية هداية عداوة پشان كلمات خارج شول وجه داده چې دلته تاالازمي ده او كلمه دې نه بغير مستعمل نه ده نو دا واو او يائه په طرف كې دي او ته په حكم دطرف كې دا قانون مصدر جامد مشتق ټولو كې جاري كيږي .

**اول شرط**: دادي چه واو په مقابله دلام کلمه کې وي احترازي مثال وُعِدَ عُوِرَ دلته لام مقابله کې نه دي

**دويم شرط**: دادې چې دې واو نه ماقبل مکسور وي احترازي مثال دَعَوَ يَدْعُوْ دلته ماقبل مکسور نه دې اتفاقي مثال دُعَوَ نه دُعِيَ دَاعِوَانِ نه دَاعِيَانِ

## ٥٦- قانون : هر يا که واقع شود درآخر فعل فتح غير اعرابي وما قبلش مکسور باشد کسره ماقبلش رابفتح بدل کرده جوازاً پس يا رابه الف بدل کنندبکليه قال بر لغت بني طي :

ددې قانون نوم دې د دُعىٰ قانون دې لپاره يوحکم دې اوپنځه شرطونه دي .

**حکم** : يې دادې چې ديانه ماقبل کسره په فتحه سره بدلول جائز دي بيا يا په الف سره بدلول واجب دي دقَالَ په قانون سره .

**اول شرط** : دادې چې ياپه آخرکي وي احترازي مثال بَيَعَ يَسَرَ دلته آخرکې نه ده .

**دويم شرط** : دادې چه صيغه دفعل وي احترازي مثال دَاعِيَةٌ دا داسم ده

**دريم شرط** : دادې چه دې باندې حرکت دفتحه وي احترازي مثال يَرْمِيُ دلته مضموم ده .

**څلورم شرط** : دادې چې فتحه اعرابي نه وي احترازي مثال لَنْ يَرْمِيَ دلته عامل ناصبه فتحه ورکړې ده

**پنځم شرط** : دادې چې ددې ياماقبل مکسور وي احترازي مثال رَمَيَ دلته ماقبل مفتوح دې اتفاقي مثال دُعِيَ نه دُعىٰ ونيل جائز دې بيا دُعىٰ ونيل واجب دي

## ٥٧- قانون : هر واو ويا مضموم يامکسور که واقع شود مقابله لام کلمه بعد از ضمه وکسره و واو وضمه ويانباشد آن واو ويا بدل از همزه بابدال جوازي وحرکتش منقول از همزه نباشد :

ددې قانون نوم دې د يَدْعُوْ او يَرْمِيْ قانون دې لپاره يوحکم اوشپږ شرطونه دي دري شرطونه وجودي او دري عدمي دي

**حکم** : يې دادې چې واو او يا مضموم وي يا مکسور وي احترازي مثال لَنْ يَدْعُوَ لَنْ يَرْمِيَ دلته مفتوح دي

**دويم شرط :** دادې چې لام په مقابله کې وي احترازي مثال يَقُوْلُ يَرجِعُ دلته دعين په مقابله کې دي

**دريم شرط :** دادې چې دواو اويانه ماقبل هم مضموم يامکسور وي احترازي مثال يَدْعَوْ يَرْمِيْ دلته مفتوح دي .

**څلورم شرط :** دادې چې واو دضمه او يا په مابين کې اويا دکسره او واو په مابين کې نه وي احترازي مثال تُدْعُوِيْنَ رَامِيُوْنَ . دلته واو دضمه او ياپه مابين کې دي او يا دکسره او واو په مابين کې ده .

**پنځم شرط :** دادې چې واو اويا دهمزه په بدل کې نه وي په جوازي (۱) قانون سره احترازي مثال : كُفُوْمُسْتَهْزِيُوْنَ اصل کې كُفُوْيَسْتَهْزِءُوْنَ وؤ دلته يا واو دهمزه نه بدل کې دي په جوازي قانون سره .

**شپږم شرط :** دادې چې دواو او ياحرکت دهمزه نه بدل کې نه وي احترازي مثال يَسُوْيَجِيُ اصل کې يَسُوْءُ يَجِيْءُ وُو اتفاقي مثال يَدْعُوْ يَرْمِيْ نه يَدْعُوْ يَرْمِيْ ونيل واجب دي

## ۵۸- قانون : هر واو که واقع شود سيوم جا چون صاعد شود آن را به يا بدل كنند وجوباً بشرطيکه ماقبلش مضموم و واو ساکن نباشد :

ددې قانون نوم دې د يُدْعٰى (۲) قانون : دې لپاره يوحکم دې او څلورشرطونه دي :

**حکم :** يې دادې چې واو په يا سره بدلول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې واو په اصل کې په دريم ځاې کې وي احترازي مثال : اِسْتَوْفٰى . اصل نه مراد دماضي معلوم ثلاثي مجر اوله صيغه ده ددې اصل وَفٰى دې دلته واو په اول ځاې کې دې .

**دويم شرط:** دادې چې دريم ځاې نه ترقي وکړي احترازي مثال دَعَوْنَ دلته دريم ځاې کې دې .

(۱) که چرته واو او يا دهمزې نه په وجوبي قانون سره بدل شوې وي نو زير بحث قانون به جاري کيږي لکه جاء اصل کې جاءء وؤ دويمه همزه بدله شوه په يلبانلې جاءي شو دېنه پس زير بحث قانون سره جاءين شو التقائی ساکنين راځله په مابين ديالو نون تنوين کې يا حذف شوه جاء شو .

(۲) بعض علماء وائي چې دې قانون ته ضرورت نشته په واو کې دې دقال والا قانون جاري شي بس ليکن جمهور محققين فرمائي چې اول به ديدې قانون جاري شي بيا دقال قانون ځکه ابطال نه اعمال بهتر دې .

**دريم شرط** : دادې چې دواو ماقبل مضموم نه وي احترازي مثال يَدْعُوْ دلته ماقبل مضموم دي.

**څلورم شرط** : دادې چې دواو ماقبل واو ساکنه نه وي احترازي مثال مَدْعُوْوٌ دلته واو نه مخکې بل واو ساکن شته . اتفاقي (۱) مثال : د يَدْعُوْ نه يُدْعِى بيا د قَالَ په قانون سره يُدْعٰى .

## ۵۹- قانون : هر واو لازم غير بدل از همزه كه واقع شود درآخر اسم متمكن ماقبلش مضموم باشد يا واو مده زائده باشد درجمع آن رابيابدل كنند وجوباً ودر مفرد مانع از وجوب اعلال است آن واو مده زائده مگر وقتيكه ماقبلش ديگر واو متحرك باشد :

ددې قانون نوم دې د أَدْلٍ تَـبَنِّ قانون : دې لپاره دوه حكمه دي . داول حكم لپاره دشرطونو درې جماعته دي . اول جماعت لپاره اوه (۷) شرطونه دي دويم جماعت لپاره اته (۸) شرطونه دي دريم جماعت لپاره نهه (۹) شرطونه دي او دويم حكم لپاره نهه (۹) شرطونه دي .

**اول حكم** : دادې چې واو په يا سره بدلول واجب دي .

**د اولني جماعت اولنى شرط** : دادې چې واو وي احترازي مثال رِامِيٌّ دلته ياده .

**دويم شرط** : دادې چې واو لازمي وي احترازي مثال ضَارِبُوْ اصل كې ضَارِبٌ وۆ دلته واو عارضي دې په جوازي قانون سره نون تنوين نه بدل دې .

**دريم شرط** : دادې چې دغه واو همزه نه بدل نه وي احترازي مثال كُفُواً اصل كې كُفُوٴاً وۆ دلته واو دهمزې نه بدل نه دي

**څلورم شرط** : دادې چې دغه واو په آخر دكلمه كې وي احترازي مثال وَعَدَ قَوَلَ دلته واو په ابتداء او مينځ كې دې

**پنځم شرط** : دادې چې دغه واو داسم په آخر كې وي احترازي مثال يَدْعُوْ دلته دفعل په آخر كې دي

**شپږم شرط** : دادې چه داسم متمكن په آخر كې وي (يعني اسم معرب) احترازي مثال هُوَ داسم غير متمكن دې

(۱) پنځم او شپږم ځلمي مثال دعو استدعو نه ادعى استدعى دقال په قانون سره ادعى استدعى شو مثال دهغه چې په اوم ځاى كې ... استدعاو نه استدعاي په قانون ددعاء سره استدعاء شو

**اوم شرط** : دادې چې ددې واو ماقبل مضموم وي احترازي مثال دَاعِوٌ مَدْعُوٌ دلته ماقبل مکسور او مفتوح دي اتفاقي مثال اَدْلُوٌ تَبَنُّوٌ نه اَدْلَى تَبَنِّيٌ دېنه بعدپه قانون د دِعِيٌ سره اَدْلِيٌ تَبَنِّيٌ شو دېنه بعدپه قانون د يَدْعُوْسره اَدْلِيْنٌ او تَبَنِّيْنٌ شو دېنه بعدپه قانون دالتقائى ساكنين سره اَدْلٍ تَبَنٍّ شو .

**ددويم جماعت اولنې شرط** : دادې چه واو وي احترازي مثال رَاضِيٌ .

**دويم شرط** : دادې چه واو لازمي وي احترازي مثال ضَارِبُوْ .

**دريم شرط** : دادې چه واو دهمزې نه بدل نه وي احترازي مثال كُفُواً .

**څلورم شرط** : دادې چه دغه واو په آخر دكلمه كې وي احترازي مثال وَعَدَ قَوْلٌ .

**پنځم شرط** : دادې چه دغه واو داسم په آخر كې وي احترازي مثال يَدْعُوْ .

**شپږم شرط** : دادې چه دغه واو به داسم متمكن په آخر كې وي احترازي مثال هُوَ .

**اوم شرط** : دادې چې دې واو نه ماقبل يو بل واو مده زائده وي احترازي مثال حُوْوٌ په وزن د فُعْلٌ دلته واو نه ماقبل مده زائده نشته .

**اتم شرط** : دادې چې دا واو په جمع كې وي احترازي مثال مَدْعُوْوٌ دلته ماقبل واو مده زائده ده په مفرد كې اتفاقي مثال دَعُوْوٌ داد دَاعٍ جمع ده دويم واو بدل شو په ياباندې نو د دُعُوْيٌ شو په قانون د قُوَيْلٌ سره دُعِيٌّ شو په قانون د اَدْلٍ ثاني سره دِعِيٌّ شو .

**دريم جماعت اولنې شرط** : دادې چې واو وي احترازي مثال رَاضِيٌ .

**دويم شرط** : دادې چې واو لازمي وي احترازي مثال : ضَارِبُوْ اصل كې ضَارِبٌ وو .

**دريم شرط** : دادې چې واو دهمزې نه بدل نه وي احترازي مثال : كُفُوْاً اصل كُفُؤًا وو .

**څلورم شرط** : دادې چې واو په آخر كې وي احترازي مثال : قَوْلٌ .

**پنځم شرط** : دادې چې دغه واو داسم په آخركې وي احترازي مثال : يَدْعُوْ .

**شپږم شرط** : دادې چې اسم متمكن په آخركې وي احترازي مثال هُوَ .

**اووم شرط** : دادې چې دې واو نه ماقبل بل واو مده زائده وي احترازي مثال حُوْوٌ .

**اتم شرط** : دادې چې دمفرد په صيغه كې واو وي احترازي مثال دُعُوْوٌ دادجمعې صيغه ده

**نهم شرط** : دادې چې مده زائده والاواو نه ماقبل هم واو متحرك وي احترازي مثال مَدْعُوْوٌ دلته واو مده نه ماقبل عين دې واو نه . اتفاقي مثال : مَقْوُوْوٌ آخري واو په ياسره بدل شونو مَقْوُوْيٌ شو په قانون د قُوَيْلٌ سره مَقْوِيٌ په قانون د اَدْلٍ ثاني سره مَقْوِيٌّ شو .

**دویم حکم** : دادې چې واو په یا سره بدلول جائز دي .

**اول شرط** : دادې چې واو وي احترازي مثال رَاضٍ .

**دویم شرط** : دادې چې واو لازمي وي احترازي مثال : ضَارِبُوْ اصل کې ضَارِبُ وو .

**دریم شرط** : دادې چې واو دهمزې نه بدل نه وي احترازي مثال : كُفُواً .

**څلورم شرط** : دادې چې دغه واو په آخر کې وي احترازي مثال قَوَلٌ .

**پنځم شرط** : دادې چې دغه واو داسم په آخر کې وي احترازي مثال يَدْعُوْ .

**شپږم شرط** : داچې دغه واو داسم معرب په آخر کې وي احترازي مثال : هُوَ .

**اووم شرط** : داچې دواو نه ماقبل بل واو مده زائده وي احترازي حُوْوٌ .

**اتم شرط** : دادې چې صيغه دمفرد وي احترازي مثال دُعُوْوٌ .

**نهم شرط** : دادې چې واو مده نه ماقبل بل واو متحرك نه وي احترازي مثال : مَقْوُوْوٌ دلته واو مده زائده نه ماقبل بل واو متحرك دې اتفاقي مثال مَدْعُوْوٌ دلته آخري واو بدل شو په یاباندې نو مَدْعُوْيٌ شوپه قانون د قُوَيْلٌ سره مَدْعُيٌّ شوپه قانون د اَدْلٍ ثاني سره مَدْعِيٌّ شو .

## ٦٠ - قانون هریامشدد یامخفف که واقع شود در آخر اسم متمکن ماقبلش اگریک حرف مضموم باشد ضمه آن را بکسره بدل کنند وجوباً واگر دوباشند چون دُعُيٌّ ضمه متصل را وجوباً غیر متصل را جوازاً :

ددې قانون نوم دې د دِعِيٌّ قانون او اَدْلٍ او كَبَبٍ دويم قانون : ددې لپاره دوه حکمه دي هرحکم لپاره پنځه شرطونه دي .

**اول حکم** : دادې چې ديانه ماقبل ضمه په کسرې سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې ياوي احترازي مثال وَعْدٌ دلته يانشته

**دویم شرط** : دادې چې یابه په آخرکې وي احترازي مثال بَيْعٌ دلته یاپه مابین کې ده

**دريم شرط** : دادې چې داسم په آخر كې وي رَحًىٰ دلته دفعل په آخر كې ده .

**څلورم شرط** : دادې چې يا داسم متمكن په آخر كې وي احترازي مثال : هِيَ .

**پنځم شرط** : دادې چې ديانه ماقبل صرف يوه ضمه وي احترازي مثال دُعِيٌّ دلته ماقبل دوه حروف مضموم دي . اتفاقي مثال ديائې مخفف ادلى تبنى نه اَدْلُيٌ تَبَنُّيٌ ديا مشدد مَرْمُيٌّ نه مَرْمِيٌّ

**دويم حكم** : دادې چه دياسره متصل ضمه په كسرې سره بدلول واجب دي اوغيرمتصل جائز دي .

**اول شرط** : دادې چې يا (مخفف . مشدد) وي احترازي مثال وَعْدٌ .

**دويم شرط** : داچې ياپه آخر كې [1] وي احترازي مثال يُسْرٌ بَيْعٌ .

**دريم شرط** : دادې چې ياد اسم په آخر كې وي احترازي مثال رَمَىٰ .

**څلورم شرط** : دادې چې يا داسم متمكن (معرب) په آخر كې وي احترازي مثال : مُنِّيٌّ حُيٌّ دا اسم غيرمتمكن دي .

**پنځم شرط** : دادې چې يا نه ماقبل مضموم حروف يو نه زيات وي احترازي مثال : اُدْلُيٌ مَرْمِيٌّ دلته ديانه قبل صرف يوحرف مضموم دې اتفاقي مثال ديائې مشدد دُعِيٌّ . دياځې مخفف مثال رُخِيٌّ نه رِخِيٌّ .

**فائده** : په دواړو كې دعلماء اهل صرف دوه ډلې دي يوه ډله اول دغير منصرف اعتبار كوي بيا دتعليل . او دويمه ډله اول دتعليل بيا دمنصرف او غير منصرف .

## ٦١ – قانون : هر حرف علت كه واقع شود درآخر فعل مضارع غير بدل از همزه وقت دخول جوازم وبنا كردن امر حاضر معلوم حذف كرده مي شود وجوباً :

ددې قانون نوم دې د لَمْ يَدْعُ اُدْعُ قانون : دې لپاره يو حكم او پنځه شرطونه دي .

**حكم** : يې دادې چې حرف علت حذف كول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې حرف علت په آخر كې وي احترازي مثال : يَقُوْلُ دلته په مابين كې دې

**دويم شرط** : دادې چه په آخر دفعل كې وي احترازي مثال دَاعِوٌ رَامِيٌ دلته داسم په اخر كې دې

---

[1] [illegible] حقيقة وي او كه حكماً حقيقة مطلب دادې چې ديانه پس بل حرف نه وي لكه ادلى . حكماً مطلب دا چې يا دلام [illegible] الف او نون دتثنيه يا واو او نون دجمع وي لكه : طيان نه طيان .

**دریم شرط** : دادې چې آخر دفعل مضارع وي احترازي مثال دَعَیٰ رَمَیٰ اصل کې دَعَوَ او رَمَيَ وؤ دلته دفعل ماضي په آخر کي دي .

**څلورم شرط** : دادې چې حرف علت دهمزه نه بدل نه وي احترازي مثال یَهْنِئُ یَجْرُؤُ اصل کې یَهْنِئُ یَجْرُءُ .

**پنځم شرط** : دادې چې په دې صیغه باندې حرف جازمه داخل وي یا امرحاضرمعلوم ترېنه جوړ کړې احترازي مثال یَدْعُوْ . یَرْمِيْ دلته نه حرف جوازم شته او نه د امر حاضر جوړولو اراده ده اتفاقي مثال یَدْعُوْ یَرْمِيْ تَدْعُوْ نه لَمْ یَدْعُ . لَمْ یَرْمِ . لَمْ تَدْعُ . اُدْعُ .

## ٦٢ - قانون : در التقائی ساکنین علی غیر حده اگرساکن اول غیر مده واوجمع باشد آن را حرکت ضمه مي دهند وجوباً واگر ساکن اول غیر مده یائی واحده باشد آن را حرکت کسره مي دهند وجوباً :

ددې قانون نوم دې لِتُدْعَوُنَّ او لِتُدْعِيِنَّ قانون . دې لپاره دوه حکمه دي او دهرحکم لپاره درې درې شرطونه دي .

**اول حکم** : یې دادې چې واو دجمعې ته ضمه ورکول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې اجتماع ساکنین علی غیر حده وي احترازي مثال اِحْمَارَّ اُحْمُوْرَّ دا علی حده دي

**دویم شرط** : دادې چې اول ساکن غیر مده وي احترازي مثال اِضْرِبُنْ اصل کې اِضْرِبُوْا ؤو کله چې دلته نون ثقیله متصل شو نو اِضْرِبُوْنَّ شو دلته اول ساکن مده دي .

**دریم شرط** : دادې چې اول ساکن واو دجمعې وي احترازي مثال لَوِاسْتَطَعْنَا اصل کې لَوْاِسْتَطَعْنَا وؤ دلته واو دجمع نه دي اتفاقي مثال لِتُدْعَوُنَّ اصل کې لِتُدْعَوْ ؤو کله چې دې سره نون ثقیله متصل شو نو لِتُدْعَوُنَّ شو

**دویم حکم** : دادې چې یاني واحده ته کسره ورکول واجب دي

**اول شرط** : دادې چې التقاني ساکنین علی غیرحده وي احترازي مثال اِحْمَارَّ اُحْمُوْرَّ

**دویم شرط** : دادې چې اول ساکن غیرمده وي احترازي مثال اِضْرِبِنَّ اصل کي اِضْرِبِيْنَ وؤ دلته اول ساکن مده دي

**دویم شرط** : دادې چې اول ساکن یاء واحده وي احترازي مثال **ضَارِبِيْ الْقَوْمِ** اصل کې **ضَارِبِيْنَ** وو په وخت داضافت کې نون دتثنیه حذف شو دلته یادتثنیه ده اتفاقي مثال **لِتُدْعَيِنَّ** اصل کې **لِتُدْعَىْ** وو کله چې ورسره نون ثقیله متصل شو یاته کسره ورکړې شوه . نو **لِتُدْعَيِنَّ** شو .

## ۶۳ – قانون : واو لام کلمه فعل اسمي يامي شود ويالام كلمه فُعْلى اسمي واو مي شود وجوبا :

ددې قانون نوم دې : د **دُعْيٰ فَتْوٰى** قانون : دې لپاره دوه حکمه دي هر حکم لپاره درې درې شرطونه دي .

**اول حکم** : دادې چې واو په یا سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې واو په مقابله دلام کلمه کې وي احترازي مثال **قُوْلٰى وُعْدٰى** دلته دلام په مقابله نه دې .

**دویم شرط** : دادې چې وزن د **فُعْلٰى** وي احترازي مثال **دَعْوٰى** دا وزن د**فُعْلٰى** نه دې .

**دریم شرط** : دادې چې **فُعْلٰى** اسمي (۱) وي احترازي مثال **غُزْوٰى** (په معنی دجنګ کونکې ښځې سره) دا **فُعْلٰى** صفتي دي اتفاقي مثال **دُعْوٰي دُنْوٰي** نه **دُعْيٰ دُنْيَا** وئیل واجب دي .

**دویم حکم** : دادې چې یا په واو سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې یا په مقابله دلام کلمه کې وي احترازي مثال **بَيْضَا** دلته دعین په مقابله کې ده .

**دویم شرط** : دادې چې د **فُعْلٰى** په وزن باندې وي احترازي مثال **رُمْىٰ** دا وزن د **فُعْلٰى** دې .

---

(۱) فعلی (بضم فاوسکون عین) اسمي کله چې ددې لام کلمه واو وي نو یاسره بدلیږي لکه دعوی نه دعی که چرته دفعلی صفتي په لام کلمه کې واووي نو په خپل حالت به باقي وي لکه غزوي (معنی جنګ کونکې ښځه) . سوال : دنیا او علیا مؤنث دادنی او اعلی دي او دا اسم تفضیل دي لهذا پدې کې معنی وصفي ده . نه اسمي حالانکه مذکوره قانون دفعلی اسمي لپاره دې نه وصفي لپاره . جواب : دلته کې د اصل په اعتبارسره معنی وصفي ده لیکن حالا داسمیت په معنی کې دیر مستعملیږي ځکه کله چې دا صفت واقع کیږي نو معرف باللام وي لکه : الحیوة الدنیا والمنزلة العلیاوحیوة دینا او منزلة علیا نه ویل کیږي که چرته دا صفات وي نو دنورو صفاتو پشان به معرف باللام او غیر معرف دواړو حالاتو کې صفات واقع کیدلې . هر چې فعلی تفضیلي ده نو حکم یې دفعلی اسمي دې (علم الصیغه) .سوال : فعلی اسمي کي تعلیل کیږي فعلی صفتي کې ولې نه کیږي؟ جواب : فعلی اسمي کې ثقل دې بیا په لام کلمه کې چه واو راغلو نو ثقل پکې نورهم دیر شو دې جې نه دا واو په یا سره بدلوۀ چې یا دواو نه خفیفه ده په وزن دفعلی صفتي . فعلی اسمي کې دنواعلوا وۀ . فعلی صفتي که چرته لام کلمه کې واو وي نو په خپل حالت به باقي وي لکه غزوی که یاوي نو هم پخپل حالت به باقي وي لکه قضیا .

**دویم شرط** : دادې چې **فُعْلیٰ** اسمي (۱) وي احترازي مثال **صَدْيٰ** (په معنی دتګې بنځې سره) دا **فَعْلیٰ** صفتي دې اتفاقي مثال **فَتْیٰ تَقْیٰ** نه **فَتْویٰ تَقْویٰ** وئيل واجب دي .

## ۶۴ - قانون : هر همزه که واقع شود بعد از الف مفاعل قبل از ياء ودر مفرد قبل از ياء نبود آن را به يا مفتوحه بدل مي كنند وجوباً مگر واو كه واقع شده بود درمفردش بعد از الف چهارم جاچرا که آن همزه را درجمع بواو مفتوحه بدل كنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د **رَخَايَا** او **اَدَاوَا** قانون : دې لپاره دوه حکمه دي اول حکم لپاره څلور شرطونه دي دويم حکم لپاره پنځه شرطونه دي .

**اول حکم** : دادې چې همزه په يا سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې همزه دالف نه بعد واقع وي احترازي مثال **سَئَلَ** دلته همزه دسين نه بعد واقع ده

**دويم شرط** : دادې چې همزه دالف **مَفَاعِلُ** نه پس واقع وي احترازي مثال **قَائِلٌ** دلته همزه د **فَاعِلٌ** دالف نه پس واقع ده

**دريم شرط** : دادې چې دهمزې نه پس يا وي احترازي مثال **شَرَائِفُ** دلته دهمزې نه پس فا ده يانشته

**څلورم شرط** : دادې چې همزه په مفرد کې ديانه مخکې وي احترازي مثال **جَوَائِيُ** ددې مفرد **جَائِيَةٌ** دې دلته په مفرد کې همزه ديانه مخکې ده . اتفاقي مثال : **رَخَائِيُ** (۲) نه (ددې مفرد **رِخِيْوَةٌ** دې چې همزه پکې بلکل نشته) **رَخَائِيُ** په قانون د **قَالَ** سره **رَخَايَا** شو

**دويم حکم** : دادې چې همزه په واو مفتوحه سره بدلول واجب دي

۱ . فعلی (بفتح فا والف مقصوره) چې اسم وي نه صفت کله چې ددې په لام کلمه کې وي نو بدليږي په واو سره لکه تقوی اصل کې تقی وڅ دوتقی يقی نه ددې واو خلاف قيان په تاسره بدل شو او دلام کلمې يا په واو سره بدله شوه . او که چرته فعلی صفتي وي او په (ه کلمه کې يې يا وي پخپل حالت به باقي وي لکه : صدی . سوال : فعلی صفتي کې ولې تعليل نه کيږي ؟ جواب : اسم چونکه خفيف وي لهذا دواو ثقيل تحمل کولې شي او هر چې صفت دې نو په اعتبار داجزاؤ دمعنی سره پخپله ثقيل وي لهذا دواو دثقل تحمل او برداشت نشي کولې

۲ . خطائي ددې مفرد خطيئة دې چرته چې همزه ديانه مخکې نه ده بلکې روستو ده نه خطايي جوړ شو ددې نه پس په قانون دقال سره بيا خطايا جوړ شو .

**اول شرط** : دادې چې همزه دالف نه بعد واقع وي احترازي مثال سَئَلَ

**دويم شرط** : دادې چې همزې نه پس دالف دمفاعل نه وي احترازي مثال قَائِلٌ

**دريم شرط** : دادې چې همزه په مفرد کې ديانه مخکې نه وي احترازي مثال جَوَائِيُ ددې مفرد جَائِيَةٌ دې

**څلورم شرط** : دادې چې دهمزې نه بعد ياوي احترازي مثال شَرَائِفُ

**پنځم شرط** : دادې چې (ددې څلور شرطونو والاهمزه) په داسې جمع کې وي چې مفرد کې يې واو دالف نه بعد په څلورم ځاې کې واقع وي احترازي مثال رَخَائِيُ نه ددې مفرد راځي رِخْيَوَةٌ واو په څلورم ځاې کې دې خو ديانه بعد واقع دې دالف نه بعد نه دې اتفاقي مثال د اَدَائِوُ نه اَدَاوَا

**وضاحت** : اَدَائِوُ ددې مفرد راځي اِدَاوَةٌ په معنی دنمر سره واو دلته دالف نه بعدپه څلورم ځاې کې واقع دې په قانون د دُعِيَ سره اَدَائِيُ شو بياپه همدغه قانون سره اَدَاوَىُ شو پس ددېنه په قانون د قَالَ سره اَدَاوى شو

**نوټ** : دا قانون په ناقص کې ذکر کول تسامح ده دا په مهموز کې ذکر کول پکار ؤو لکه څرنګې چې ابن حاجب رَحِمَهُ اللهُ په شافيه کې او نور واهل فن ذکر کړې دې

## ٦٥ - قانون : هر جا سه يا دريک کلمه جمع شوند باين طور که اول مدغم درثاني وثالث مقابله لام کلمه آن ثالث راحذف کنند نسيامنسيا بشرطيکه در تصغير باشد هم چنين اگر دو (۱) يا جمع شوند حذف يکې جائز است چون سَيِّدٌ که او را سَيْدٌ خواندن جائز است :

ددې قانون نوم دې د رُخَيٌّ رُخَيَّةٌ قانون دې لپاره يوحکم او شپږ شرطونه دي

**حکم** : يې دادې چې په دريم ځاې کې يا حذف کول واجب دي

**اول شرط** : دادې چې درې (يا) وي احترازي مثال حَيِّ دلته دوه دي اصل يې حَيِيَ راځي

**دويم شرط** : داچې درې واړه (يا) په يوه کلمه کې وي احترازي مثال حَيِّ يَعْقُوبُ دلته درې واړه ياپه يوه کلمه کې ندي

---

(۱) چرته چې دوه يا دعين کلمه په مقابل کې جمع وي هلته کې يوحذف کول جايز وي لپاره دتخفيف لکه سيد کې سيد وئيل جائز دي .

**دريم شرط** : دادې چې درې واړه يا په يوځاې جمع وي او مابين كې يې بل حرف نه وي احترازي مثال يُؤَيِّدُ دلته درې (يا) كې مابين كې همزه ده

**څلورم شرط** : دادې چې اوله ياپه دويمه ياكې مدغمه شوې وي احترازي مثال قُبَيِّيٌّ دلته دويمه يا مدغمه ده په دريمه كې .

**پنځم شرط** : دادې چې دريمه يا دلام كلمې په مقابله كې وي احترازي مثال مُقَيِّيْلٌ دلته دريمه ياپه مقابله دلام كې نه ده بلكه زائده ده .

**شپږم شرط** : دادې چې صيغه دتصغير وي احترازي مثال حَيِّيَ مُحَيِّيٌ دا دفعل او جاري مجراي فعل صيغې دي اتفاقي مثال رُخَيِّوةٌ رُخَيَّوةٌ په قانون د دُعِيَ رُخَيِّيٌ رُخَيِّيَةٌ شوې دې اوس دريمه يا حذف شوه رُخَيٌّ رُخَيَّةٌ وئيل واجب دي

## ٦٦ - قانون : هر واو ويا كه واقع شود قبل تائې تانيث يازيادة فعلان ماقبلش واو مضموم باشد ضمه ماقبلش رابكسره بدل كنند وجوباً واگر غير واو باشد آن يا را بواو بدل كنند و واو برحال خود ماند :

ددې قانون نوم دې د قَوِيَةٌ قَوِيَانِ قانون دې لپاره دوه حكمونه دي دهر حكم لپاره درې درې شرطونه دي

**اول حكم** : دادې چې واو او يا نه ماقبل والاضمه په كسرې سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې واو او يا وي احترازي مثال ضَرَبَتْ سَمِعَتْ

**دويم شرط** : دادې چې واو اويا دتائې تانيث نه قبل واو وي يادفَعُلَانِ (١) دزيادت نه قبل واقع وي احترازي مثال رَخُوَ نَهُيَ

**دريم شرط** : دادې چې واو او يانه قبل بل واو مضموم وي احترازي مثال رَخُوَتْ نَهُيَتْ رَخُوَانِ نَهُيَانِ دلته واو او يانه قبل بل واو مضموم نشته اتفاقي مثال د واو قَوُوَةٌ قَوُوَانِ نه قَوِوَةٌ قَوِوَانِ دهنه بعد په قانون ددعى سره قَوِيَةٌ قَوِيَانِ دیا مثال طَوُيَةٌ طَوُيَانِ نه طَوِيَةٌ نه طَوِيَانِ

**دويم حكم** : دادې چې ياپه واو سره بدلول او واو په خپل حالت باندې ساتل واجب دي

**اول شرط** : دادې چې يا او واووي احترازي مثال ضَرَبَتْ سَمِعَتْ

**دویم شرط:** دادې چې واو اویا دتائې تانیث یا دزیادت د فَعُلَانٍ نه مخکې واقع وي احترازي مثال رَخُوَ نَهُيَ

**دریم شرط:** دادې چې واو اویانه ماقبل بل واو مضموم نه وي احترازي مثال قُوُوَتٌ قُوُوَانٍ طُوُيَتٌ طُوُيَانٍ اتفاقي مثال رَخُوَةٌ رَخُوَانٍ نَهُوَةٌ نَهُوَانٍ اصل کې نَهُيَةٌ نَهُيَانٍ وو

## ٦٧ - قانون : هر یا که واقع شود در فعل در مقابله لام کلمه ماقبل او مضموم باشد واو شود وجوباً :

ددې قانون نوم دې د رَمُوَ قانون . دې قانون لپاره یو حکم او درې شرطونه دي .

**حکم :** یې دادې چې یا واو سره بدلول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې یا په مقابله دلام کې واقع وي احترازي مثال : بُيِعَ دلته دعین کلمې په مقابله کې واقع ده .

**دویم شرط :** دادې چې فعل کې وي احترازي مثال نَهُيٌ دا اسم دې .

**دریم شرط :** دادې چې یا نه ماقبل مضموم وي احترازي مثال : رَمَيَ دلته یانه ماقبل مفتوح دې اتفاقي مثال رَمُيَ رَمُوَ وئیل واجب دي .

**فائده :** نَهُوَ يَنْهُوُ كَنُوَ يَكْنُوُ اصل کې نَهُيَ يَنْهُيُ كَنُيَ يَكْنُيُ وؤ په قانون د رَمُوَ سره نَهُوَ يَنْهُوُ يَكْنُوُ شول بیا د يَدْعُوْ په قانون سره يَنْهُوْ او يَكْنُوْ شول که چیرته د يَدْعُوْ قانون د رَمُوَ نه مخکې جاري شي نو بیابه يَنْهُيُ يَكْنُيُ شي ددې نه پس به په قانون د يُوْسَرُ سره يَنْهُوْ يَكْنُوْ شي .

**سوال :** په دې دواړو تعلیلونو کې اولی تعلیل کوم یو دې ؟

**جواب :** تبدیلي په دوه قسمه ده : ١- ذاتي ٢- صفتي . ذاتي تبدیلي ډیره اولی ده اول به د رَمُوَ قانون جاري شي بیاد يَدْعُوْ قانون ورنه تقدم دصفت به راشي په ذات باندې او دا جائز نه ده كذا في الشافيه هسې تبدیلي هم دحرکت دحذف نه اولی وي .

**فائده :** دهمزه تبدیلي ته تخفیف . دحرف علت تغیر ته اعلال یوحرف چې بل حرف کې داخل شي او مشدد شي دې ته ادغام وائي .

## ٦٨ - قانون : هر همزه ساکن مظهر که ماقبلش متحرک باشد همزه در دیگر کلمه ماسوائی همزه مطلقاً آن همزه ساکن رابوفق حرکت ماقبل بحرف علت بدل کنند جوازاً بشرطیکه باعث تحریکش موجود نباشد :

ددې قانون نوم دې دیَامَنُ یُؤمِنُ قانون دې لپاره یوحکم دې او پنځه شرطونه دي

**حکم** : یې دادې چې همزه دماقبل حرکت موافق دحرف علت سره بدلول جائز دي

**اول شرط**: دادې چې همزه ساکن وي احترازي مثال سَئَلَ سُئِلَ دلته همزه متحرکه ده

**دویم شرط**: دادې چې همزه مظهري احترازي مثال سَئَّلَ دلته مدغم ده .

**دریم شرط**: دادې چه دهمزې نه ماقبل متحرك وي احترازي مثال یَسْئَلُ دلته ماقبل ساکن دې

**څلورم شرط**: دادې چې دهمزه دمتحرك والي سبب موجود نه وي احترازي مثال یَئْمُمُ د ادغام په صورت کې به یَئُمُّ (١) شي دلته دهمزې متحرك والي سبب موجود دې .

**پنځم شرط**: دادې چې دهمزې نه ماقبل که همزه وي نوجدا جدا کلماتوکې به وي که ماقبل همزه نه وي نوبیامطلقاً یعنې همزه او دهغې ماقبل یوکلمه کې وي او که جدا کلمه کې وي احترازي مثال ءَأْمَنَ دلته دهمزې نه ماقبل همزه په یوه کلمه کې ده اتفاقي مثال : یَأْمَنُ (٢) نه یَامَنُ وئیل واجب دي

١. یئیم کې یامیم وئیل ممتنع دې ئیم وئیل واجب دي ځکه همزه په الف سره بدلول جائز دي او میم په میم کې مدغم کول واجب دي پس دوجوب رعایت اولی دې .

٢ ددې قانون اتفاقي مثالونه په درې قسمه دي : ١ - دهمزې ساکنه ماقبل همزه په دویمه کلمه کې وي لکه : یقرء اءزر . لن یقرء ازر یقرء ازر همزه وصلیه په درج در کلام کې ساقطه شوه . دپنه بعد همزه ساکنه دماقبل حرکت موافق حرف علت سره بدل شوه یقرء ... یقرء ازر یقرء ... زر وئیل جائز دي . ٢ - دهمزه ساکنه ماقبل غیر همزه بله کلمه کې وي لکه : یقول اءذن لي . الی الهدی ... وئلا ... تمن همزه وصلیه په درج دکلام کې ساقطه شوه دپنه بعد همزه ساکنه دحرکت ماقبل موافق علت سره بدله شوه یقولوا ... الی الهدی اتنا ... وئیل جائز دي ٣ دهمزه ساکنه ماقبل غیر همزه په یو کلمه کې وي لکه : یاخذ یاخذ ماخذ کې همزه دماقبل حرکت موافق حرف علت سره بدله شي یاخذ یوخذ میخذ وئیل جایز دي

**٦٩ - قانون : هرهمزه ساكن مظهر كه ماقبلش ديگرهمزه متحرك باشد از آن كلمه آن همزهٔ ساكن رابوفق حركت ماقبل بحرف علت بدل كنند وجوباً بشرطيكه باعث تحريكش موجود نباشد اگر همزهٔ اول وصلي باشد در درج كلام مي اُفتدوهمزهٔ ثاني بصورت خود عود مي كند مگركُلْ خُذْ مُرْ شاذ اند :**

ددې قانون نوم دې د آمَنَ اُوْمِنَ قانون ددې لپاره دوه حكمه دي اول حكم لپاره پنځه شرطونه دي او دويم حكم لپاره اوه(۷) شرطونه دي .

**اول حكم** : دادې چې همزه دماقبل حركت موافق حرف علت سره بدلول واجب دي .

**اول شرط** : دادې چې همزه ساكن وي احترازي مثال سَئَلَ دا مفتوحه ده

**دويم شرط** : دادې چې همزه مظهر وي احترازي مثال سَئَّلَ دا مدغمه ده

**دريم شرط** : دادې چې دهمزې ساكنې نه مخكې يوبله همزه متحركه وي احترازي مثال : قَرْءٌ دلته دهمزې ساكنې نه مخكې بله همزه متحركه نه ده

**څلورم شرط** : دادې چې دواړه همزې په يوه كلمه كې وي احترازي مثال يَقْرَءُءْزَرْ

**پنځم شرط** : دادې چې دهمزې دمتحرك كيدو سبب موجود نه وي احترازي مثال اَئُمُّ اصل كې اَءْمُمُ وؤ د ادغام په صورت كې همزه به متحرك كيږي اتفاقي مثال اَءْمَنَ اُءْمِنَ اِءْمَانًا نه آمَنَ اُوْمِنَ اِيْمَانًا وئيل واجب دي

**دويم حكم**: دادې چې وصليه به ساقطه شي اوهمزه ثانيه به په خپل اصل حالت واپس راشي

**اول شرط** : دادې چې همزه ساكن وي احترازي مثال سَئَلَ

**دويم شرط** : دادې چې مظهر وي احترازي مثال سَئَّلَ

**دريم شرط**: دادې چه دهمزې ساكنې نه مخكې به يوه همزه متحركه وي احترازي مثال قَرْءٌ

**څلورم شرط** : دادې چې دواړه په يوه كلمه كې وي احترازي مثال يَقْرَءُءْ زَرْ

**پنځم شرط** : دادې چې دهمزې دمتحرك كيدلو سبب موجود نه وي احترازي مثال اَءْمُّ

**شپږم شرط** : دادې چې اول همزه وصليه وي احترازي مثال اَءْمَنَ دلته اوله همزه قطعي ده

**اووم شرط** : دادې چې همزه وصليه په مينځ د كلام كې واقع وي احترازي مثال أُؤْتُمِنَ دلته همزه وصليه په مينځ د كلام كې واقع نه ده اتفاقي مثال ضَارِبُ اُءْتُمِنَ په يَاْمَنُ يُؤْمِنُ قانون سره چې همزه ساكنه په حرف علت سره بدله شوه نو ضَارِبُ ؤ تُمِنَ شو اوس د دغه حكم مطابق دويمه همزه چې د واو سره بدله وه واپس به راشي خپل اصلي حالت ته نو ضَارِبُ ءْتُمِنَ به شي ددې ونيل واجب دي

## ۷۰- قانون : هر همزه مفتوحه كه ماقبلش مضموم يامكسور ياهمزه در ديگر كلمه باشد وماسوائی همزه مطلقا همزه مفتوحه رابوفق حركت ماقبل بحرف علت بدل كنند جوازاً :

ددې قانون نوم دې د مِيَرٌ غُلَامُ يَحْمَدُ قانون ددې قانون لپاره يوحكم او درې شرطونه دي

**حكم** : يې دادې چې همزه مفتوحه د ماقبل حركت موافق حرف علت سره بدلول جائز دي

**اول شرط** : دادې چې همزه مفتوحه وي احترازي مثال سُئِلَ دا مكسوره ده

**دويم شرط** : دادې چې ددې همزې نه مخكې يا مضموم وي يامكسور وي احترازي مثال سَئَلَ دلته ماقبل دهمزې نه مفتوحه دې

**دريم شرط** : دادې چې دهمزې نه مخكې كه همزه وي نو جدا جدا كلماتو كې به وي احترازي مثال أَئِيدِمُ دلته يوه كلمه كې دي اتفاقي مثال مِئَرٌ (۱) نه مِيَرٌ (په معنی دكينې اودشمنې سره) جُئَنٌ نه جُوَنٌ بمعنی ظرفی ازظروف عطاركه در آن خوشبو دارند )

## ۷۱- قانون : هر جاكه دوهمزه متحرك كه جمع شوند دريک كلمه اگر يكې از ايشان مكسور باشد ثاني رابه يا بدل كنند وجوباً سوائی ائمة كه درين جاجائز است واگر هيچ يكی از ايشان مكسور نباشد ثاني را بواو مفتوحه بدل كنند وجوباً مگر اءكرم شاذ است :

ددې قانون نوم دې د أُوَيْدِمُ جَاءٍ شَاءٍ قانون ددې لپاره دوه حكمه دي هر حكم لپاره څلور شرطونه دي

---

(۱) ... دماقبل همزه وي نو جدا جدا كلماتو كې به وي لكه يحيي احمد كې يحيي وحمد ... ايسک نه بقا يبيک كه ... مطلق يعنی همزه او دهغې ماقبل په يو كلمه كې وي لكه مئرجئن نه ميرجون ياجدا كلماتو كې وي ...

**اول حکم :** دادې چې همزه ثانیه په یاسره بدلول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې دوه همزې وي احترازي مثال **سَئَلَ** دلته یوه همزه ده

**دویم شرط :** دادې چې دواړه همزې متحرکې وي احترازي مثال **اٰءْمَنَ** دلته یوه همزه متحرکه ده .

**دریم شرط :** دادې چې دواړه همزې یوه کلمه کې جمع وي احترازي مثال **یَقْرَءُ اَبُوْكَ** دلته په یوه کلمه کې نه دي

**څلورم شرط :** دادې چې دواړو همزو کې یوه مکسوره وي احترازي مثال **اُءَیْدِمُ** دلته یوه هم مکسوره نه ده اتفاقي مثال **جَاءِءٌ شَاءِءٌ** نه **جَاءِیٌ شَاءِیٌ** جوړ شو بیاپه قانون د **یَدْعُوْ** او **یَرْمِيْ** سره **جَائِیْنٌ** او **شَائِیْنٌ** شو بیا دالتقائی ساکنین په وجه **جَاءٍ شَاءٍ** شو .

**دویم حکم :** دادې چې همزه ثانیه په واو سره بدلول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې همزې دوه وي احترازي مثال **سَئَلَ** .

**دویم شرط :** دادې چې دواړه متحرکې وي احترازي مثال **اٰءْمَنَ**

**دریم شرط :** دادې چې دواړه همزې جمع وي په یوه کلمه کې احترازي مثال **یَقْرَءُ اَبُوْكَ**

**څلورم شرط :** دادې چې دواړو همزو کې یوه هم مکسوره نه وي احترازي مثال **جَاءِءٌ** دلته یوه مکسوره ده اتفاقي مثال **اَءَادِمُ اُئَیْدِمُ** همزه ثانیه به په واو سره بدلـه شي **اَوَادِمُ اُوَیْدِمُ** وئیل واجب دي .

## ۷۲ – قانون : هر همزه متحرک که ماقبلش ساکن مظهر قابل حرکت باشد سوائی یائی تصغیر ونون انفعال و واو ویا مده زائده دریک کلمه حرکت آن همزه را نقل کرده بماقبل داده جوازاً همزه راحذف کنند وجوباً مگر مرأت شاذ است :

ددې قانون نوم دې د **یَسْئَلُ** قانون ددې لپاره یوحکم دې او اووه (۷) شرطونه دي څلور وجودي دي او درې عدمي دي

**حکم :** دادې چې د همزې حرکت ماقبل ته نقل کول جائز دي بیاهمزه حذف کول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې همزه متحرکه وي احترازي مثال **یَأْمَنُ** دلته همزه ساکنه ده

**دویم شرط:** دادې چه دهمزې نه ماقبل ساکن وي احترازي مثال سَئَلَ دلته ماقبل متحرك دې

**دریم شرط:** دادې چې همزه مظهر وي احترازي مثال سَئَّلَ يُسَئِّلُ دلته همزه مدغم ده

**څلورم شرط:** دادې چې دهمزې ماقبل قابل دحرکت وي احترازي مثال سَائَلَ تُسَائُلاً دلته ماقبل دهمزې الف دې او دا قابل دحرکت نه دې

**پنځم شرط:** دادې چې دهمزې نه ماقبل یائی تصغیر نه [۱] وي احترازي مثال سُوَيْئِلْ اُفَيْئِسْ دلته ماقبل یائی تصغیر ده

**شپږم شرط:** دادې چې دهمزې نه مخکې دباب انفعال نون نه وي احترازي مثال اِنْئَطَرَ دلته دهمزې نه مخکې نون دانفعال دې

**اووم شرط:** دادې چې دهمزې نه مخکې واو او یا ، یاء مده [۲] زائده په یوه کلمه [۳] کې نه وي احترازي مثال خَطِيْئَةٌ مَقْرُوْءَةٌ دلته دهمزې نه مخکې واو مده زائده یا مده زائده یوه کلمه کې دې اتفاقي مثال يَسْئَلُ نه يَسَلُ

**فائده:** يَرٰى يُرٰى او تمام افعال رُؤْيَة کې دا قانون وجوبي طور باندې جاري کیږي اوپه اسماء مشتقه کې په جوازي طور باندې

## ۷۳ – قانون : هر همزه که واقع شود بعد از یائی تصغیر و واو ویا مده زائده در یکه کلمه آن همزه را جنس ماقبل کرده جوازاً ادغام می کنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د اُفَيِّسْ خَطِيَّةٌ مَقْرُوَّةٌ قانون ددې لپاره یو حکم او دوه کامل شرطونه دي

[۱] دلته صرف دیائی تصغیرنفي ده که چرته ماقبل دهمزې نه یاوي خودتصغیرنه وي نوبیابه قانون جاري کیږي لکه : شيئ نه شي .

[۲] دهمزې نه قبل واو یامده اصلي وي نو هم قانون به جاري کیږي لکه : سوء سيئت نه شو سيت . که چرته همزې نه قبل واو یا [illegible] نده برائی الحاق وي نو بیاپه هم قانون جاري کیږي لکه : جیئل (کفتار) جوءب (فراخ چشم) نه جیل جوب هذا ماظهر في هذا [illegible] والله اعلم بالصواب

[۳] که چرته واو یامده [illegible] نده جدا جدا کلماتو کې وي نو قانون به هلته جاري کیږي لکه باعوا اموالهم کې باعوموا لهم او قد افلح کې [illegible] [illegible] سوال دهمزه قطعیه قانون تقاضا کوي چې دقد افلح همزه دې باقي وي ددې قانون تقاضا ده چې حذف دې [illegible] تضاد معلومیږي؟ جواب دهمزه قطعیه قانون تقاضا کوي دباقي ساتلو خو شرط ورلره دادې چې [illegible] په دې قانون کې نقل حرکت ماقبل ته ور کول دي بيا همزه حذف کول واجب دي تضاد خو په هله وو چې [illegible] دهمزې قطعیه په قانون دهمزې ساتلو جهت جدا دې او دې قانون کې دحذف کولو جهت جدا دې لهذا هیڅ تضاد [illegible]

**حکم :** يې دادې چې همزه د ماقبل په جنس سره بدلول جائز او بيا جنس په جنس کې مدغم کول واجب دي .

**اول شرط :** دادې چې همزه ديائی تصغير نه بعد وي احترازي مثال اِئْتَطَرَ دلته همزه د نون اِنْفِعَالَ نه بعد ده اتفاقي مثال أُفَيْئِسٌ نه أُفَيْيِسٌ کول جائز دي او أُفَيِّسٌ وئيل واجب دي

**دويم شرط :** دادې چې د همزې نه مخکې واو او يا مده زائده په يوه کلمه کې وي احترازي مثال بَاعُوْا اَمْوَالَهُمْ دلته هم جُدا جُدا کلمه کې دي او ددې ماقبل مده زائده جُدا کلمه کې ده اتفاقي مثال مَقْرُوْءَةٌ خَطِيْئَةٌ کې مَقْرُوْوَءَةٌ او خَطِيْيَةٌ وئيل جائز بياجنس په جنس کې مدغم کول او مَقْرُوَّةٌ او خَطِيَّةٌ وئيل واجب دي .

## ۷۴- قانون : هر دو همزه که جمع شوند در کلمه غير موضوع علی التضعيف اول ساکن ثاني متحرک باشد آن رابيا بدل کنند وجوباً :

ددې قانون نوم دې د قِرَءْيٌ قانون ددې قانون لپاره يو حکم دې او درې يې شرطونه دي .

**حکم :** يې دادې چې همزه ثانيه په ياسره بدلول واجب دي .

**اول شرط :** يې دادې چې دوه همزې جمع وي احترازي مثال لُؤْلُؤٌ دلته جمع نه دي

**دويم شرط :** يې دادې چې کلمه موضوع علی التضعيف نه وي احترازي مثال سَئَّلَ تَسَئَّلَ دلته کلمه موضوع علی التضعيف ده

**دريم شرط :** دادې چې اوله همزه ساکن وي او دويمه همزه متحرکه وي احترازي مثال اَءْمَنَ دلته اوله همزه متحرکه او دويمه همزه ساکنه ده اتفاقي مثال قِرَءْءٌ همزه ثانيه به يا سره بدله شي قِرَءْيٌ وئيل واجب دي

## ۷۵- قانون : هر همزه متحرکه منفرده راکه ماقبلش نيز متحرک باشد بآن حرکت بوفقِ حرکتِ ماقبل بحرف علت بدل کنند جوازاً :

ددې قانون نوم دې د سَالَ قانون ددې لپاره يو حکم او څلور شرطونه دي

**حکم :** يې دادې چې همزه د ماقبل حرکت موافق په حرف علت سره بدلول واجب دي

**اول شرط :** دادې چې همزه متحرکه وي احترازي مثال يَأْمَنُ دلته ساکنه ده

**دويم شرط :** دادې چې همزه منفرده وي يعنې يواځې وي احترازي مثال أُئَيْدِمُ دلته دوه همزې دي

**دریم شرط** : دادې چې دهمزې نه ماقبل متحرك وي احترازي مثال يَسْئَلُ دلته دهمزې نه ماقبل ساکن دې

**څلورم شرط** : دادې چې په همزې کې کوم حرکت وي هغه په ماقبل سَئَلَ نه سَالَ کُفُؤٌ نه کُفُوٌ مُسْتَهْزِئِيْنَ نه مُسْتَهْزِيِيْنَ

## ۷۶- قانون : هر همزه منفرده مکسوره که ماقبلش حرکت مضموم باشد ومضموم بعد از کسره بوآوو بدل شود جوازآنزد اخفش :

ددې قانون نوم دې دسُوِلَ مُسْتَهْزِيُوْنَ قانون ددې لپاره دوه (۲) حکمونه دي او دهرحکم لپاره درې درې شرطونه دي

**اول حکم** : دادې چې همزه په واو سره بدلول جائزدي

**اول شرط** : دادې چې همزه منفرده وي احترازي مثال أَئِيْدِمُ دلته دوه همزې دي

**دویم شرط** : دادې چې همزه مکسوره وي احترازي مثال سَئَلَ دلته همزه مفتوحه ده

**دریم شرط** : دادې چې دهمزې نه ماقبل مضموم وي احترازي مثال سَئِمَ دلته دهمزې ماقبل مفتوح دې اتفاقي مثال سُئِلَ نه سُوِلَ غُلَامُ اِبْرَاهِيْمَ نه غُلَامُ وِبْرَاهِيْمَ وئيل جائز دي

**دویم حکم** : دادې چې همزه په یا سره بدلول جائز دي

**اول شرط** : دادې چې همزه منفرده وي احترازي مثال أَئِيْدِمُ دلته دوه همزې دي

**دویم شرط** : دادې چې همزه مضمومه وي احترازي مثال سُئِلَ دلته همزه مکسوره ده

**دریم شرط** : دادې چې دې همزې نه ماقبل مکسور وي احترازي مثال يَدْرَءُ دلته ماقبل مفتوح دې اتفاقي مثال مُسْتَهْزِءُوْنَ نه مُسْتَهْزِيُوْنَ بِجَبْلِ اُحُدٍ نه بِجَبْلِ يُحُدٍ وئيل جائز دي

## ۷۷- قانون : هر همزه وصليه مفتوحه که داخل شود برآن همزه استفهام آن همزه را بالف بدل کرده شود وجوبامع باقي داشتن التقائی ساکنین :

ددې قانون نوم دې د آلْحَسَنُ او آلْئٰنَ قانون ددې لپاره یوحکم او درې (۳) شرطونه دي

**حکم**: چې دادې چه همزه داستفهام په الف سره بدلول او التقائی ساکنین باقي ساتل واجب دي

**اول شرط** : دادې چې همزه وصلي وي احترازي مثال ءَاَنْذَرْتَهُمْ دلته همزه قطعي ده

**دویم شرط** : دادې چې همزه مفتوحه وي احترازي مثال اِكْتَسَبَ دلته مکسوره ده

**دریم شرط** : دادي چې همزه وصلي باندې همزه داستفهام داخل وي احترازي مثال جَاءَ الْحَسَنُ دلته همزه داستفهام داخل نه ده اتفاقي مثال اَلْحَسَنُ نه اَلْحَسَنُ او ءَالْآنَ نه آلْآنَ ونيل واجب دي

**۷۸- قانون : هر گاه که دو حرف متاجنسين اگر جمع شوند دراول کلمه ثلاثي مجرد يا رباعي مجرد ادغام ممتنع است ودرکلمه اول ثلاثي مزيد فيه جائز است مطلقاً سوائی مضارع چراکه درمضارع وقتی جائز است که حاجت بهمزه وصل نيفتد واگر هر دو متجانسين در اول کلمه نباشد واول ساکن ثاني متحرک باشد ادغام واجب است بوجود پنج شرائط . اول : اينکه آن متجانسين دو همزه در کلمه غير موضوع على التضعيف نباشد چون قِرَءْيٌ که دراصل قِرَءْءٌ بود . دوم : آنکه اول متجانسين هائی وقف نباشدچون اَغَرَهْ هِلاَلُ . سوم : اينکه اول متجانسين مده مبدل بابدال جواز نباشد چون رِيْيَا که دراصل رِءْيَا بود.**

**چهارم : اينکه اول متجانسين مده در آخر کلمه نباشد چنانکه فِيْ يَوْمٍ . پنجم : اينکه ادغام باعث التباس يک وزن قياسي بديگروزن قياسي نباشد چنانچه قُوْوِلَ تُقُوْوِلَ که ملتبس مي شود به قُوِّلَ تُقُوِّلَ واگر آن متجانسين هردومتحرک باشند ادغام واجب است بوجود نه شرائط : اول : اينکه اول متجانسين مدغم فيه نباشد چنانچه حَبَّبَ . دوم : اينکه حرفي از متجانسين زائده برائی الحاق نباشد چنانچه جَلْبَبَ شَمْلَلَ . سوم : اينکه اول متجانسين تا افتعال نباشد چنانچه اِقْتَتَلَ . چهارم : اينکه آن متجانسين تا افتعال نباشد چنانچه اِرْعَوٰى که دراصل اِرْعَوَوَ بود . پنجم : اينکه هيچ يکی از متجانسين مقتضی اعلال نباشد چنانچه قَوِيَ که در اصل قَوِوَ بود . ششم : اينکه حرکت ثاني عارضي نباشد چون اُرْدُدِالْقَوْمَ . هفتم : اينکه آن متجانسين در دوکلمه نباشد چون مَكَّنَنِيْ واگردر دو کلمه باشند پس اگرماقبل متحرک يالين غير مدغم باشد ادغام جائز ورنه ممتنع . هشتم: اينکه آن متجانسين دو يا نباشند چون حَيِيَ رُمْيِيَانِ . نهم : اينکه متجانسين در اسم**

**بریک ازاین پنجم اوزان نباشند چون فَعَلٌ (سَبَبٌ) فِعَلٌ (رَدِدٌ) فُعُلٌ (سُرُرٌ) فِعَلٌ (عِلَلٌ) فُعَلٌ (دُرَرٌ) سوائی مصدر حرف مدغمش رابیابدل کنند چون دِیْنَارٌ شِیْرَازٌ که در اصل دَنَّارٌ شِرَّازٌ بودند .**

ددې قانون نوم دې دمضاعف يعني متجانسين قانون . ددې لپاره دوه حکمونه دي . اول حکم لپاره درې شرطونه دي او دويم حکم لپاره دشرطونو دوه جماعتونه دي

**اول حکم :** دادې چې دمتجانسين حروف ادغام کول جائز دي .

**اول شرط :** دادې چې دواړه متجانسين دکلمې په اول کې جمع وي احترازي مثال **مَدَدَ يَمْدُدُ** دلته دکلمې په آخر کې جمع دي .

**دويم شرط :** دادې چې دثلاثي مجرد او رباعي مجرد په اول کې جمع نه وي احترازي مثال **دَدَنٌ ضَضْرَبَ** دلته د ثلاثي مجرد او رباعي مجرد په اول کې دي .

**دريم شرط :** دادې چې که چيرته دکلمې ثلاثي مزيد فيه په اول کې وي نو[1] دمضارع د ادغام لپاره په کې شرط دادې چې دهمزه وصلي ضرورت رانشي احترازي مثال **تَتَضَارَبُ تَتَصَرَّفُ** دلته د ادغام په صورت کې به **اِتَّضَارَبُ** او **اِتَّصَرَّفُ** شي . اتفاقي مثال **فَتَتَضَارَبُ فَتَتَصَرَّفُ** نه **فَتَّضَارِبُ فَتَّصَرَّفُ** ونيل جائز دي

**دويم حکم :** دادې چې متجانسين ادغام واجب دي .

**داولني جماعت اولنې شرط :** دادې چې متجانسين دکلمې په اول کې نه وي . احترازي مثال **تَتَرَكَ** دلته دکلمې په اول کې دي

**دويم شرط :** دادې چې متجانسين کې اول ساکن او ثاني متحرك وي احترازي مثال **اِمْتَدِدْ** دلته اول متحرك او ثاني ساکن دې

**دريم شرط :** دادې چې دا متجانسين دوه همزې په کلمه غيرموضوع على التضعيف کې نه وي احترازي مثال **قِرَءْءٌ** دلته دوه همزې په کلمه غير موضوع على التضعيف کې دي

[1] اجتماع دمتجانسين په اول کلمه دماضي کې عام دې په صورت دادغام کې که دهمزې ضرورت وي او که نه وي لکه : تتارک . ... نه اتارک اترک یا فتتارک فتترک نه فتتارک فتترک نه فتارک فترک ونيل جائز دي باقي مضارع لپاره شرط دادې چې تائې مضارعت نه متکلم حرف متحرک وي یا ماده زائده وي لکه فتتنزل نه فتنزل قالو تتنزل نه قالو تنزل .

**خلورم شرط** : دادې چې اول دمتجانسين (١) نه ها دوقف نه وي احترازي مثال اَغَرَّةُ هِلَاكٌ

**پنځم شرط** : دادې چې اول دمتجانسين نه دمده جوازي قانون سره بدل نه وي احترازي مثال رِئْيَا اصل کې رِئْيَا وؤ

**شپږم شرط** : دادې چې اول متجانسين (٢) مده په آخر دکلمې کې نه وي احترازي مثال فِيْ يَوْمٍ قَالُوْا وَمَالَنَا دلته متجانسين يا او واو مده دي .

**اووم شرط** : دادې چې ادغام دالتباس باعث نه وي يعنې که ادغام وشي نو ديوقياسي وزن التباس به دبل قياسي وزن سره راشي احترازي مثال قُوْوِلَ تُقُوْوِلَ (باب مفاعله وباب تفاعل) التباس راځي په صورت د ادغام کې دقول تقول باب تفعيل او باب تفعل سره اتفاقي مثال اِضْرِبْ بِعَصَاكَ الْحَجَرَ نه اِضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ مِنْ نَا . عَنْ نَا . نه . مِنَّا عَنَّا وئيل واجب دي

**ددويم جماعت اولنې شرط** : دادې چې متجانسين په اول دکلمې کې نه وي احترازي مثال تَتَرَّكَ دلته متجانسين دکلمې په اول کې دي

**دويم شرط**: دادې چې دواړه متجانسين متحرك وي احترازي مثال اِمْتَدِدْ دلته دويم ساکن دي

**دريم شرط** : دادې چې دمتجانسين اول حرف مدغم فيه نه وي احترازي مثال : حَبَّبَ دلته اول مدغم فيه دي .

**څلورم شرط** : دادې چې يومتجانس هم زائد دالحاق (٣) لپاره نه وي احترازي مثال اِقْتَتَلَ دلته اول دمتجانسين دباب افتعال تا ده .

---

(١) په هائی وقف کې دعدم تعليل وجه داده چې ها انفصال غواړي که چرته ادغام وشي نو دها فائده چې انفصال دې هغه به باقي پاتې نشي

(٢) اول متجانسين که چرته مده نه وي نو قانون به جاري وي لکه : آو ونصروا اصل کې او وونصروا که چرته اول دمتجانسين مده په آخر دکلمه کې نه وي ادغام واجب دي لکه : مدعوا اصل کې مدعوو وؤ .

(٣) چرته چې تکرار دالحاق لپاره وي هلته کې ادغام جائز نه دي لکه : شملل کې لام ثاني ددحرج هموزن کيدلو په وجه راوړې شوې دې الحاق ديته وايي چه ثلاثي کې يو حرف زيات شي درباعي هم وزن ترېنه جوړشي يارباعي کې يو حرف زيات شي او دخماسي هم وزن ترېنه جوړشي لپاره ددې چې کومه معامله ملحق سره کيدې شي هغه دملحق به سره هم وکړې شي .

**شپږم شرط :** دادې چې متجانسين دوه واوه [۲] دافعلال باب دنه .نه وي احترازي مثال إِرْعَوى اصل كې إِرْعَوَوَ وؤ

**اووم شرط :** دادې چې يو متجانس هم مقتضي داعلال نه وي احترازي مثال قَوِيَ چې اصل كې قَوِوَ وؤ دلته واو ثاني مقتضى داعلال دې .

**اتم شرط :** دادې چې ددويم متجانس حركت عارضى [۲] نه وي احترازي مثال أُرْدُدِالْقَومَ اصل كې أُرْدُدْالْقَوْمَ وؤ دلته ددال ثاني حركت عارضي دې دالتقائى ساكنين دوجې راغلې دې

**نهم شرط :** دادې چې دا متجانسين يوه كلمه كې وي احترازي مثال مَكَّنَنِيْ يوه كلمه كې نه دې ځكه دلته نون ثاني نون وقايه دې .

**لسم شرط :** دادې چې دا متجانسين دوه [۳] يانه وي احترازي مثال حَيِيَ رُمُيَيَانِ دلته متجانسين دوه يا دي .

**يولسم شرط :** دادې چې متجانسين داسم په دې مذكوره پنځه اوزانو كې نه وي :

۱ - فَعَلٌ ۲ - فِعِلٌ ۳ - فُعُلٌ ۴ - فِعَلٌ ۵ - فُعَلٌ احترازي مثال سَبَبٌ .رِدِدٌ . سُرُرٌ . عِلَلٌ . دُرَرٌ اتفاقي مثال مَدَدَ . فَرَرَ نه مَدَّ .فَرَّ . يَمْدُدُ نه يَمُدُّ وئيل واجب دي .

**فائده :** دمصدر نه بغير كوم اسم چې دفعال په وزن وي نو هلته حرف مدغم په حرف علت سره بدليږي وجوباً لكه دِيْنَارٌ . شِيْرَازٌ اصل كې دِنَّارٌ شِرَّازٌ وؤ .

# تمت بالخير

[۱] سوال : ارعوى اصل كې ارعوو ؤو تول شرائط په كې موجود دي بيا ولې ادغام نه دې شوې؟ جواب : چرته چې دادغام او اعلال تعارض وي هلته كې اعلال مقدم كيږي ځكه اعلال كې تخفيف ډير دې نو په ارعوى كې هم دډير تخفيف لپاره دقال قانون جاري ذې شو او اعلال مقدم شوې دې .

[۲] حركت به عارضي نه وي ځكه حركت عارضي دسكون په حكم كې دا شرط صرف داهل حجاز په نزد دې بنو تميم ادغام كوي وجوبا

[۳] جواز دې ادغام لپاره دوه صورتونه دي : ۱ – متجانسين دوه كلماتو كې وي او اول متحرك وي لكه : ضرب . بشر . ضر . بشر . وئيل شي لاتامنا لاتامنا وئيل جائز دې . كه چرته متجانسين كې اول متحرك نه وي نو ادغام ممتنع دې لكه قرم مالک يامتجانسين دوه همزې متعدد كلماتو كې وي بياهم ادغام ممتنع دې لكه قرء ابوک . ۲ – متجانسين دوه كلماتو كې وي او اول حرف لين غير مدغم وي نو په دې صورت كې هم ادغام جائز دې لكه ثوب بشر . ثو بشر وئيل واجب دي .

بسم الله الرحمن الرحيم

## معين الطلاب في خواص الابواب :

## په ثلاثي مجرد او غير ثلاثي مجرد بابونو کې فرق :

دثلاثي مجرد اوزان دومره ډیر دي چې دیو وزن یوخاص باب پورې اختصاص نشته او غیر ثلاثي مجرد کې دمصدر لپاره یوخاص وزن وي، پس په ثلاثي مجرد کې دمصدر تعین دباب دالتباس دوجې نه متعذر دی او غیر ثلاثي مجرد کې التباس لپاره څه محل نشته، ددې وجې نه دثلاثي مجرد دابوابو دامتیاز لپاره ماضي او مضارع دواړه یوه مشترکه دستور مقرر کړلې شو او دغیر ثلاثي مجرد ابوابو دامتیاز لپاره دمصدر وزن دستور مقرر شو

دثلاثي مجرد ابوابو لپاره څه قاعده نشته صرف په سماع باندې موقوف دي دماضي دثلاثي مجرد دعین لپاره درې حالتـه دي نو درې لـه چې پـه درې کې ضرب ورکړې ټول نهه ابواب جوړېږي، مگر ماضي مكسور العين او مضارع مضموم العين او ددې عکس او ماضي مضموم او مضارع مفتوح العين دا درې بابونه نه راځي دېنه ماسوی شپږ بابونه پاتې شو چې په دې کې درې اصول ( فَعَلَ يَفْعِلُ فَعَلَ يَفْعُلُ فَعِلَ يَفْعَلُ ) دي او درې فروع (فَعَلَ يَفْعَلُ فَعِلَ يَفْعِلُ فَعُلَ يَفْعُلُ) دي. پس که دیومادې ماضي مجرد تاته معلوم وي نو دمضارع دعین کلمې دحرکت لپاره لغت طرف ته رجوع وکړه. دخپل قیاس نه دیو حرکت تعین مه کوه. دماضي مضموم العين لپاره دا خبره متعین شوې ده چې مضارع بـه یې نـه مفتوح العین راځي او نـه مكسور العين ماسوی دمضموم العین نه بل احتمال په کې نشته اگر چې علم الصرف والو دماضي او مضارع دعین کلمې دپېژندلو لپاره څه لفظي او معنوي علامات مقرر کړي دي مگر مدار دپېژندلو جوړول لغت لره دا ډیر بهتر دي

| باب | لفظي پېژندنه | معنوي پېژندنه |
|---|---|---|
| فَعَلَ يَفْعِلُ | چې دکوم لفظ فا کلمه واو اویا . یا عین کلمه، یا یې لام کلمه یا وي نو هغه به ددې باب نه راځي لکه: وَعَدَ يَعِدُ . يَسَرَ . يَسِرُ . بَاعَ . يَبِيْعُ . رَمَى . يَرْمِيْ . | |
| فَعَلَ يَفْعُلُ | چې دکوم لفظ عین یالام کلمه واو وي نو هغه لفظ به ددې باب نه راځي لکه قَالَ يَقُوْلُ دَعَا | که چې دوه کسان په یوه خبره کې ضد وکړي چې دهغې نه |

| | | |
|---|---|---|
| | يَدْعُوْ اوكه چيرته عين او لام كلمه ديوجنس حروف وي او متعدي هم وي نو دې باب نه به وي لكه مَدَّ يَمُدُّ. | باب مفاعله جوړيږي او يوشريك په كې غالب وي نو دا فعل كه دهر باب نه وي ديو شريك غلبه په دې باب سره ظاهريږي مثلاً ضَارَبْتُهٗ. خمااودهغه په مابين كې وهل وشو. فَضَرَبْتُهٗ پس ماو وهلو يُضَارِبُنِيْ فَاَضْرُبُهٗ ما اوهغه كې چې وهل تكول كيږي نو زه يې وهم . د ضَرَبَ مضارع مكسور العين ده مګردلته اَضْرُبُهٗ بضم الراء وئيلې كيږي نه اَضْرِبُهٗ بكسرالراء مګرداخبره دې واضحه وي چې دباب فَعِلَ يَفْعِلُ لفظي خاصه دې پدې قاعدې سره منقوضه نه وي پس دكوم لفظ چې فاكلمه واو اويا ،ياوي، ياعين كلمه ياوي يا لام كلمه ياوي نو دمغالبې په صورت كې برقرار وي . |
| فَعِلَ يَفْعَلُ | داباب ډير لازمي وي | درنج، خوشي، مرض، رنګ، عيوب، جسماني حليۀ اكثر الفاظ ددې باب نه راځي لكه مَرِضَ يَمْرَضُ فَرِحَ يَفْرَحُ |

| | | |
|---|---|---|
| | | عَوِرَ يَعْوِرُ خَوِفَ يَخْوَفُ |
| فَعَلَ يَفْعَلُ | څومره الفاظ چې ددې باب نه راخي نو عين يا لام كلمه به يې حرفو حلقي وي مګر يو كلمه چې عين يالام كلمه كې حرف حلقي وي نو دا ددې خبرې دليل نه دې چې هغه دې خامخادباب دفَعَلَ يَفْعَلُ نه وي لكه وَعَدَ يَوْعِدُ نَزَعَ يَنْزِعُ كه چيرته عين يالام كلمه دواړه همجنس وي نو هغه ددې باب نه نشي كيدې | |
| فَعُلَ يَفْعُلُ | هميشه لازم مستعمليږي | داباب دحلقي صفاتولپاره مخصوص دي لكه حَسُنَ يَحْسُنُ صَغُرَ يَصْغُرُ. |
| فَعِلَ يَفْعِلُ | داسې كلمات چې په هغې كې عين او لام كلمه دواړه همجنس وي ماسوى دحب او لب نه. نه دي اوريدل شوي په صحيح كې ددې حَسِبَ يَحْسِبُ او نَعِمَ يَنْعِمُ . وَرِثَ وَلِيَ وَفِقَ وَرِعَ . وَرِمَ وَرِيَ وَلِيَ . | باب په وزن باندې مګردوه لفظه هم ددې باب الفاظ معدود دي لكه وَمِقَ وَغِرَ وَحِرَ وَلِهَ وَهِلَ وَعِمَ وَطِيَ يَئِسَ يَبِسَ |

## مجرد باب مزيد جوړولو سره دا فوائد حاصليږي :

**۱- تعديه :** يعنې لازم نه متعدي كيدل يا كه فعل متعدي وي نو ديوبل مفعول اضافه كيدل لكه خَرَجَ نه اَخْرَجَ

**۲- تصيير :** صاحب دماخذ جوړول لكه اَشْرَكَ النَّعْلَ هغه پيزار تسمه دارجوړ كړو ماخذ شِرَاكَ دې بمعنى تسمه

**۳- تعريض :** مفعول لره دمأخذ ځاې اومحل ته بوتلل لكه اَبَعْتُ الْحِمَارَ ماحمار،خر لره دخرخولوځاې ته بوتلو

**۴- وجدان :** په يوشي كې دماخذ صفت موندل لكه اَبْخَلْتُهُ ماهغه لره بخيل مونده كړو

**۵- ابتداء :** ديو فعل ابتداء ددې باب نه كيدل ماسوى ددېنه چې دغه فعل دثلاثي مجرد نه

راغلې وي او كه راغلې هم وي نو هلته يعنې مجردو كې به جدا معنى كې مستعمل وي كومه چې ثلاثي مزيدوكې نه وي لكه أَشْفَقَ معنى ده هغه وويريدلو مجرديې شَفَقَ په معنى دمهرباني سره

**٦- اتخاذ** : يوشي په ماخذ كې اخستل ياماخذ جوړول لكه تَوَسَّدَالْحَجَرَ هغه كانړي لره تكيه جوړه كړه

**٧- اشتراك** : ددوه كسانوپه يوكاركې داسې شريكيدل چې هر يوكس دفاعل اومفعول دواړو حيثيت لري لكه قَاتَلَ زَيْدٌ عَمْراً زيد دعمرو سره مقاتله وكړه او عمرو دزيد سره

**٨- اقتضاب** : ديو فعل ابتداء ددې باب نه كيدل او ثلاثي مجرد مطلقاً نه راتلل ديوباب نه هم لكه تَبَخْتَرَ (په تكبرسره تلل) غَرْمَرَ (اواز اوچتول)

**٩- التباس ماخذ** : يوشي ته ماخذ اغوستل لكه جَلَّلَ الْفَرَسَ هغه اس ته زين واخستلو

**١٠- بلوغ** : ماخذ ته راتلل يا مخذ ته رسيدل لكه خيم هغه د خَيَّمَ لاندې راغلو أَعْرَقَ هغه عراق ته ورسيدو

**١١- تحول** : ديوشي عين ماخذكيدل ياپه مثل دماخذ كيدل لكه تَنَصَّرَ هغه نصراني شو

**١٢- تجنب** : ماخذ نه بچ كيدل لكه تَأَثَّمَ هغه دګناه نه پرهيز وكړو

**١٣- تحويل** : يوشي ماخذ ياپه مثل دماخذ جوړول لكه نَصَّرَ هغه نصراني جوړ كړو

**١٤- تخليط** : يوشئ ماخذ سره ښائسته كول لكه ذَهَّبَ هغه شي لره يې په زرو باندې ښائسته كړو

**١٥- تغيير** : دفاعل دخپل ذات لپاره يوفعل كول لكه اِكْتَالَ الشَّعِيْرَ هغه دخپل ځان لپاره وربشې پيمانه كړې

**١٦- تخييل** : فاعل په خپل ځان كې دماخذ حصول وښائي په داسې طريقې سره چې صرف ښودنه وي لكه تَمَارَضَ هغه خپل ځان مريض ظاهر كړو تَجَاهَلَ هغه خپل ځان بې جهل ظاهر كړو

**١٧- تدريج** : يو فعل په مزه باندې كول لكه تَجَرَّعَ هغه كوټ كوټ اوبه اوڅكلې

**۱۸- تصرف** : دماخذ په مصول کې کوښښ کول لکه اِكْتَسَبَ الْفَضْلَ هغه په کوښښ سره فضیلت حاصل کړو.

**۱۹- تعمل** : ماخذپه کار راوستل یاماخذ نه کار اخستل لکه تَخَتَّمَ هغه ګوتمه واغوستله.

**۲۰- تکلف** : په ماخذ کې بناوټ یا تصنع ضائع کول لکه تَشَجَّعَ هغه بهادر جوړ شو.

**فائده** : تکلف او تخییل کې دافرق دې چه په تکلف کې کوم ما خذ دفعل وي هغه پسندیده وي لیکن په تخییل کې چه کوم ماخذ دفعل وي هغه صرف ریاء وي

**۲۱- حسبان** : دیوشي متعلق داخیال کول چه داپه ماخذ سره موصوف دي لکه اِسْتَحْسَنْتُهُ ماپه هغه باندې خه ګمان وکړو.

**فائده** : وجدان او وصدان کې فرق دادې چې وجدان کې یقین وي او حسبان کې شک اوګمان وي.

**۲۲- حیونونت** : دیوشي دماخذ په وقت کې واقع کیدل یارسیدل لکه اَحْصَدَالزَّرْعُ دفصل دکټ کیدلو وخت راغلو.

**۲۳- سلب** : دیوشي نه ماخذ لرې کول لکه اشکیته ما دهغه نه شکایت لرې کړو.

**۲۴- صیروورت** : صاحب ماخذ کیدل لکه نَوَّرَالشَّجَرُ ونه ګل والا شوه.

**۲۵- طلب** : ماخذ طلب کول لکه اکتن فلاناً . هغه دفلاني نه مشقت طلب کړو . استطعمته مادهغه نه روټئ طلب کړه.

**۲۶- قصر** : داختصار لپاره دیومرکب نه یوه کلمه داشتقاق په طور جوړول لکه هَلَّلَ . هغه لااله الاالله ووئیله رَجَّعَ هغه اِنَّالِلّٰهِ وَاِنَّااِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ ووئیل.

**۲۷- لزوم وعلاج** : په فعل کې داعضاء اوجوارحو دکاراثرپیداکیدل لکه اِنْكَسَرَ . هغه مات شو

**۲۸- لیاقت** : دیوشي دماخذ لائق جوړیدل لکه اَلَامَ الْفَرْعُ سردار قابل دملامتیا شو.

**۲۹- مبالغه** : دیو مرد کیفیت یادمقدار زیادت بیانول لکه اَثْمَرَالنَّخْلُ دکهجورې په ونه کې ډیرې کهجورې اولګیدې (داپه کیفیت کې) جول ډیر وچرلیدو (دا په مقدار کې).

**۳۰- مطاوعت** : دیوفعل نه پس بل فعل راوړل چې دا ظاهره شي چې مفعول دفاعل اثر قبول کړي دي لکه كَسَرْتُهُ فَانْكَسَرَ ماهغه مات کړو نو هغه مات شو .

**موافقت** : دیوفعل هم معنې کیدل لکه سَافَرَ دسَفَرَ په معنی سره هغه سفر وکړو

**نسبت بماخذ** : دیوشي ماخذ سره منسوب کیدل لکه : فَسَّقَنِي هغه ماته بدکار ووئیلو . اَكْفَرْتُهُ ماهغه ته نسبت دکفر وکړو .

**اعطاء ماخذ** : ماخذ ورکول لکه اَعْظَمْتُ الْكَلْبَ ماسپي ته هډوکي ورکړو

**تشارک** : ددوه کسانو په صدرو دفعل کې شرکت کول لکه : تَشَاتَمَ هغوي یو بل ته کنځلې وکړې .

# تمت بالخیر

ددې معاني انحاصر مشكل دې او دعربو دمحاوراتو په تتبع باندې موقوف دې دلغت دكتابونو او دعبارت دسياق نه په اسانتيا سره معلوميږي چې په دې مقام كې ددې لفظ څه معنى ده كومو علماؤ چې په علم صرف كې مسبوط كتابونه ليكلي دي هغوي دابوابو خواص ډير څه جمع كړي دي ليكن بياهم چا دخپلو تحقيقاتو دجامع والي دعوى نه ده كړې

چونكه دا زوائد قياسيه ندي لهذا مونږه پدې بحث كې طوالت كول دمتعلم په حق كې مفيد نه ګڼړو دومره قدر كافي ده چې داددې كليه . زيادة اللفظ تدل على زيادة المعنى يعنې زيادت دلفظ دلالت كوي په زيادت دمعنى . نه وګڼړو او دلغت دكتابونو په حواله يې كړو دنمونې په طور څه خواص ليكل كيږي

## باب افعال :

**۱- تعديه** : لكه أَخْرَجَ خارج يې كړو خرج معنى ووتلو

**۲- تصيير** : لكه أَشْرَكَتِ النَّعْلُ هغه پيزار لره تسمه جوړه كړه ماخذيې شراك دې په معنى دتسمه

**۳- تعريض** : لكه أَبَعْتُ الْحِمَارَ ماحمار (خر) لره دخرڅ خاې ته بوتلو

**۴- وجدان** : لكه أَبْخَلْتَهُ ماهغه بخيل مونده كړو

**۵- ابتداء** : لكه : أَشْفَقَ هغه وويريدلو ( مجرد يې شفق مهرباني كول )

**٦- بلوغ** : لكه أَعْرَقَ عراق ته ورسيدلو

**۷- حينونت** : لكه أَحْصَدَ الزَّرْعَ فصل وخت دكټ والي ته ورسيدلو

**۸- سلب** : لكه أَشْكَيْتُهُ ما دهغه شكايت لرې كړو

**۹- صيرورت** : لكه أَلْبَنَ الْبَقَرُ غوا دپيو والا شوه

**۱۰- لياقت** : أَلَامَ الْفَرَعُ . سردار قابل دملامتيا شو

**۱۱- مبالغه** : لكه أَثْمَرَ النَّخْلُ . دكهجورې په ونه كې ډيرې كهجورې ولګيدې

**۱۲- موافقت** : لكه مجرد أَقَلْتُ الْبَيْعَ په معنى قِلْتُهُ يعنى فَسَخْتُهُ

**۱۳- نسبت بماخذ** : لكه أَكْفَرْتُهُ ماهغه ته نسبت دكفر وكړو

**اعطاء ماخذ** لكه أَطْعَمْتُ الْكَلْبَ ما سپي ته هډوكي وركړو

## باب تفعیل :

دماضي په ابتداء کې تا زائده نه وي او عین کلمه مشدده وي

**سوال** : دا قاعده ده چې په ګردان کې همیشه هغه حروف وي چې هغه ددغه باب په مصدر کې وي لیکن ددې باب په مصدر کې یوه (را) ده او په ګردان کې دو (را) دي کومې چې مشدد دي ؟

**جواب** : اهل عرب سماعي طور باندې کله ناکله په دوه هم جنس کې یو حرف بدلوي دلته هم تصریف اصل کې تصررف وؤ بیا دویمه (را) بدله شوه په (یا) باندې نو تصریف شو

**۱- تعدیه** : لکه فَرَّحَنِيْ هغه مالره خوشحاله کړو .

**۲- تصییر** : لکه وَتَّرْتُ الْقَوْسَ هغه کمان لره زه دار جوړ کړو

**۳- ابتداء** : لکه کَلَّمَ هغه خبره وکړه (مجرد کلم په معنی دزخمي کول)

**۴- الباس ماخذ** : لکه جَلَّلَ الْفَرَسَ هغه اس ته زین واغستلو

**۵- بلوغ** : لکه خَيَّمَ هغه خیمې ته راغلو

**٦- تحویل** : لکه نَصَّرَ هغه نصراني جوړ کړو

**تخلیط** : لکه ذَهَّبَ هغه سنهري جوړ کړو

**سلب** : لکه قَرَّدَالْاِبِلَ هغه داوښ نه کونې لرې کړل

**صیرورت** : لکه نَوَّرَ الشَّجَرَ ونه ګلونو والا شوه

**قصر** : لکه هَلَّلَ هغه لَااِلٰهَ اِلااللهُ ووئیله

**مبالغه** : لکه جَوَّلَ هغه ډیر وچرلید (تاویدل)

**نسبت بماخذ** : لکه فَسَّقَنِيْ هغه ماته نسبت دفسق وکړو

## باب مفاعله :

دماضي په ابتداء کې تازائده نه وي او دفاکلمې نه بعدالف وي. ددې دوه مصدر نور هم راځي

**۱- اشتراک** : لکه قَاتَلَ زَيْدٌ عَمْراً زید دعمرو سره مقاتله وکړه

**۲- موافق مجرد** : لکه سَافَرَ بمعنی سَفَرَ

**۳- موافقت افعل** : لکه بَاعَدْتُهُ بمعنی اَبْعَدْتُهُ

**۴- موافق فعل** : لکه ضَاعَفَ بمعنی ضَعَّفَ .

## باب تفعل :

دماضي په ابتداء کې تا زائده وي او عین کلمه مشدده وي .

**۱- ابتداء** : لکه تَکَلَّمَ هغه خبره وکړه .

**۲- اتخاذ** : لکه تَوَسَّدَ الْحَجَرَ هغه کاڼي نه تکیه جوړه کړه .

**۳- تجنب** : لکه تَأَثَّمَ : هغه دګناه نه پرهیز وکړو .

**۴- تحول** : لکه تَنَصَّرَ : هغه نصراني شو .

**۵- تدریج** : لکه تَجَرَّعَ هغه ګوټ ګوټ اوبه وڅکلې .

**٦- تعمل** : تَخَتَّمَ هغه ګتمه واغستله .

**۷- تکلف** : لکه تَشَجَّعَ هغه بهادر جوړ شو .

**۸- مطاوعت فعل** : عَلَّمْتُهُ فَتَعَلَّمَ ماهغه ته وښودل هغه زده کړو .

**۹- صیرورت** : لکه تَمَوَّلَ هغه مالدار جوړ شو .

## باب تفاعل :

دماضي په اول کې تازه وي او فانه بعد هو الف زائد وي .

**۱- ابتداء** : لکه تَبَارَكَ الله . الله ډیر برکت والادي (مجرد برك اوبښ کیناستل) .

**۲- تخییل** : لکه تَمَارَضَ : هغه خپل ځان مریض ظاهر کړو .

**۳- مطاوعت فاعَلَ** لکه بَاعَدْتُهُ فَتَبَاعَدَ . ماهغه لره لرې کړو پس هغه لرې شو .

**۴- تشارک** : لکه تَشَاتَمَا دې دواړو یو بل ته کنځلې وکړې .

## باب افتعال :

امر حاضر ماضي کې همزه وصلي وي او فانه بعد تازائده وي .

**۱- اتخاذ** : لکه اِحْتَجَرَ الْفَارُ : مږې سوړه ویستله

**۲- تخییر** : لکه اِکْتَالَ الشَّعِیْرَ هغه دځان لپاره وربشې پیمانه کړې

**۳- تصرف** : لکه اِکْتَسَبَ الْفَضْلَ هغه په کوشش سره فضیلت حاصل کړو

۴- **طلب** : لكه إِكْتَدَّ فُلَانًا هغه د فلان نه مشقت طلب كړو

۵- **مطاعت فعل** : لكه إِجْتَذَبَ بمعنى جَذَبَ هغه راخكلو .

٦- **مطاوعت تفاعل** : لكه إِخْتَصَمَ بمعنى تَخَاصَمَ هغه جګړه وكړه .

## باب انفعال :

ماضي امر حاضر كې همزه وصلي وي او فانه بعد نون زائده وي .

۱- **ابتداء** : لكه إِنْطَلَقَ هغه لاړو ( مجرد طَلَقَ وركول .

۲- **مطاوعة فعل** : لكه كَسَرْتُهُ فَانْكَسَرَ ما هغه مات كړو بس مات شو .

۳- **مطاوعة افعل** : لكه اَغْلَقَ الْبَابَ فَانْغَلَقَ : هغه دروازه بنده كړه پس بنده شوه .

**فائده** : باب انفعال هميشه لازمي وي متعدي نه وي او هميشه داسې معاني نه راځي چې تعلق ئې اعضاء ظاهري سره وي .

## باب استفعال :

ماضي امر حاضر كې همزه وصلي وي او فانه قبل سين او تازائده وي . كله ناكله تاخلاف القياس حذف كيږي هم .

۱- **وجدان** : لكه إِسْتَكْرَمْتُهُ : ما هغه په كرم سره متصف ومونډلو .

۲- **ابتداء** : لكه إِسْتَعَانَ زير ناف وېښته يې كټ كړل .

۳- **اتخاذ** : لكه : إِسْتَوْطَنَ الْقُرَى هغه بانډو لره وطن جوړ كړو .

۴- **تحول** : لكه إِسْتَحْجَرَ الطِّيْنُ خاوره كاڼړې شو .

۵- **تكلف** : لكه إِسْتَجْرَءَ هغه جرأت وښودلو .

٦- **طلب** : لكه إِسْتَطْعَمَتَهُ ما هغه نه طعام طلب كړو

۷- **قصر** : لكه إِسْتَرْجَعَ هغه انالله وانا اليه راجعون ووئيله

۸- **لياقت** : لكه إِسْتَرْقَعَ الثَّوْبُ كپړه قابل دپيوند شوه

۹- **مطاوعت افعل** : لكه اَقَمْتُهُ فَاسْتَقَامَ ما هغه سيده كړو پس هغه سيده شو

۱۰- **حسبان** : لكه إِسْتَحْسَنْتَهُ ما هغه لره نيكه خيال وكړو

۱۱- **موافقت مجرد** : لكه قَرَّ وإِسْتَقَرَّ موافقت اَفْعَلَ لكه اَجَابَ و إِسْتَجَابَ

## باب افعلال :

ماضي او امر حاضر کې همزه وصلي وي او عين کلمې نه بعد الف نه وي او لام کلمه دتکرار دوجې نه مشدد وي

**سوال :** دې باب کې چې هرکله دوه لام راغلل نو معلومه شوه چې رباعي دې. خکه دا درباعي علامه ده نه دثلاثي ؟

**جواب :** دوه لام درباعي علامت هغه وخت وي چې اصل وي دلته په دې باب کې دويم لام زائد دې داحمرار وزن په اصل کې افعلا وؤ مګر په قاعده د تقسيم ثانوي را زائده . ددې وزن افعلال

ويستلې شوې دې خکه را زائده دماقبل دجنس نه ده

**مبالغه :** لکه اِسْوَدَّاللَّيْلُ شپه ډيره تياره شوه

**فائده :** اکثر داباب دالوان او عيوب لپاره راخي لکه اِحْمَرَّ اِبْيَضَّ اِحْوَلَّ او هميشه لازم وي

## باب افعيلال :

ماضي او امر حاضر کې همزه وصلي وي مګر ددې باب او افعلال فرق دادې چې دلته دعين کلمې نه پس الف وي او افعلال کې پس دعين نه الف نه وي

**مبالغه :** لکه اِحْمَارَّ ډير سور شو دا باب هم دالوان او عيوب لپاره خاص دې او په دې کې دباب اِفْعِلَال نه مبالغه ډيره ده

## باب افعيعال :

ماضي او امر حاضر کې همزه وصلي وي عين کلمه کې تکرار وي پس دعين نه واو وي

**مبالغه :** لکه اِحْدَوْدَبَ . ډير شاتيتې شو

**موافقت مجرد :** لکه اِحْلَوْلِيَ التَّمَرُ بمعنى حَلَا

## باب افعوال :

ماضي او امر حاضر کې همزه وصليه وي پس دعين نه واو مشدد وي

**مبالغه :** لکه اِجْلِوَّازَ هغه ډيره تيزه منده وکړه

## باب فعللة :

ددې باب مصدر د **فَعْلَلَةٌ** په وزن باندې راخي کله ناکله په طريقې دقلت سره په وزن د **فِعْلَالٌ** باندې هم راخي لکه **زِلْزَالٌ** او کله د **فُعْلَى** په وزن باندې هم راخي لکه **قَهْقَرى**

## باب تفعلل :

ماضي کې تائی زانده مطرده وي او دواړه لامونه اصل وي

**مطاوعت** : لکه **دَحْرَجْتُهُ فَتَدَحْرَجَ** ماهغه زوړند کړو نو زوړند شو

## باب افعنلال :

ماضي امر حاضر کې همزه وصلی وي پس دعين نه پولو ګردانونو کې نون زائده وي

## باب افعلال :

ماضي امر حاضر کې همزه وصليه وي اودويم حرف زائد دلام کلمې دجنس نه وي لکه اقشعرر کې دويمه (را) زائده ده

# بحر الجواهر في كشف المصادر

## مصادر باب اول از ثلاثي مجر : فعل يفعل :

| اَلثَّلْبُ | علامت كول | اَلضَّرْبُ | پيساب يادپيوند بندول |
|---|---|---|---|
| اَلْجَدْبُ | چاباندې عيب لګول | اَلصَّلْبُ | په سولى خيژول |
| اَلْجَذْبُ | راخكل | اَلضَّرْبُ | وهل |
| اَلْجَلْبُ | شړل | وَالْمَضْرُوْبُ | ----- |
| اَلْجُلُوْبُ | ----- | وَالتِّضْرَابُ | ----- |
| اَلْحَصْبُ | كــت كـــانړو ســـره ويشتل | اَلضِّرَابُ | كبډي كول |
| اَلْحَضْبُ | اوركې لرګي اچول | اَلضَّرَبَاتُ | زخم تلاش كول |
| اَلْحَطْبُ | لرګي ټولول | اَلْعَصْبُ | تاوول |
| اَلْخَرْبُ | هلاك كول | اَلْعَضْبُ | كټ كول |
| اَلْخَشْبُ | ګډوډ كول | اَلْغَصْبُ | په زوره اخستل |
| اَلْخَضْبُ | رنګ كول | اَلْغَلْبُ | غالبه كيدل |
| اَلْخَضُوْبُ | دونې شين كيدل | وَالْغَلَبُ | ----- |
| اَلشَّذْبُ | | وَالْغَلَبَةُ | ----- |
| اَلْقَسِيْبُ | داوبويهيــــدل دآواز سره | وَالْغُلُبَةُ | ----- |
| اَلْقَشْبُ | زهرځنبل | وَالْغُلُبِيُّ | ----- |
| اَلْقَصْبُ | تكړې كول | اَلْقَضْبُ | پرې كول |
| اَلْقَطْبُ | ترش روئي كول | وَالْقُطُوْبُ | ترش روئي كول |
| اَلْقَلْبُ | التـه كول | اَلْكَذِبُ | دروغ وئيل |
| اَلْكِذْبُ | دروغ وئيل | اَلنَّسْبُ | دمارخوړل |
| اَلْكَاذِبَةُ | ----- | اَلنَّذْرُ | نذر منل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْمَكْذُوْبُ | دروغ وئيل | وَالنُّذُوْرُ | نذر منل |
| اَلْكِذَّابُ | -------- | اَلنَّسَبُ | نسبت بيانول |
| اَلْمَكْذُوْبَةُ | -------- | وَالنِّسْبَةُ | -------- |
| اَلْكَسْبُ | حاصلول | اَلنَّعْبُ | دكار غه آواز كول |
| اَلنَّحِيْبُ | پــه ژړا كــې آواز وچتول | اَلنَّعِيْبُ | ----------- |
| اَلنَّحَابُ | دهوسئ آواز كول | اَلنُّعْبَانُ | ----------- |
| اَلْهَفْتُ | دسپكوالي پـه وجـه الوتل | اَلنِّعْبَانُ | ----------- |
| اَلْهَفَاتُ | ----------- | اَلتَّنْعَابُ | ----------- |
| اَلنَّتْحُ | خوله وتل | اَلنُّعَابُ | ----------- |
| وَالنُّتُوْحُ | ----------- | وَالْحَقْدُ | كينه ساتل |
| اَلْحُتُوْدُ | اقامت كول ، وسيدل | اَلْحِقْدُ | ----------- |
| اَلْحَرْدُ | اراده كول | | |

## مصادر باب دوم از ثلاثي مجرد فعل يفعل :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْحَرْزُ | حفاظت كول | اَلْحَلْبُ | دپيو لوشل |
| اَلْحَرْبُ | سخت كيدل | وَالْحِلَابُ | ------------ |
| اَلْحَسْبُ | ورانول | اَلرُّقُوْبُ | نګراني كول |
| اَلْحُسْبَانُ | ------------ | وَالرَّقُوْبُ | ------------ |
| اَلْحَسَابَةُ | ------------ | وَالرَّقَابَةُ | ------------ |
| اَلْحِسَابُ | ------------ | وَالرِّقْبَانُ | ------------ |
| اَلْحِسْبَةُ | ------------ | وَالرِّقْبَةُ | ------------ |
| اَلسَّكْبُ | اوبه بهيدل | وَالرَّقْبَةُ | ------------ |
| اَلسُّكُوْبُ | ------------ | اَلْحَطُوْبُ | پيير كيدل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالتِّسْكَابُ | اوبه بهيول | اَلْعَقْبُ | بونده وهل |
| اَلْقَحْبُ | ټوخيدل | اَلْعُكُوْبُ | |
| اَلْقُحَابُ | ------------ | اَلْقَرْبُ | توره په تيكي كې داخلول |
| اَلْكَتْبُ | ليكل | اَلْكَزْبُ | تنګول |
| اَلْكِتْبَةُ | ------------ | اَللَّتْبُ | انختل |
| اَلْكِتَابُ | ------------ | وَاللُّتُوْبُ | ------------ |
| وَالْكِتَابَةُ | ------------ | اَلْكَلْبُ | اس په چابك وهل |

## مصادر باب سوم از ثلاثي مجرد فعل يفعل :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلتَّرْبُ | محتاج كيدل | اَلْخَنْثُ | هجړاكيدل |
| وَالْمَتْرَبُ | ------------ | اَلذَّرْبُ | توره تيزول |
| اَلتَّغَبُ | مشقت كښې پرېوتل | وَالذَّرَايَةُ | ------------ |
| اَلتَّغْبُ | هلاك كيدل | وَالذَّرُوْبَةُ | ------------ |
| اَلْجَرْبُ | خارش والاكيدل | اَلذَّهَبُ | دزور په كان كې ډير زر موندلوسره حيرانيدل |
| وَالْجَشْبُ | غتېيدل | اَلرَّجَبُ | تعظيم كول |
| اَلْجَشْرُ | ټوخيدل | اَلرَّغْبَةُ | په خوارۍ اوذلت سره غوښتل |
| اَلْجَنْبُ | مائل كيدل | اَلرَّغْبُ | غوښتل |
| اَلْجَنَابَةُ | ناپاك كيدل | اَلْخَنَبُ | كمزورې كيدل |
| اَلْحَدَبُ | مهربان كيدل | اَلْحَرَبُ | ډيرغصه كيدل |
| اَلْحَصَبُ | په بيمارۍ كښې مبتلاكيدل | اَلْخِطْبُ | شين كيدل |

## مصادر باب چهارم از ثلاثي مجرد : فعل يفعل :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلتَّعَبُ | مشقت کې پرېوتل | اَلتَّغَبُ | هلاك كيدل |
| اَلْجَفَسُ | بدهضم كيدل | اَلذَّهَبُ | تلل |
| وَالْجِفَاسَةُ | ------------ | وَالذُّهُوْبُ | ------------ |
| اَلرَّغَبُ | يره كول | اَلزُّغْبُ | لوښي ډكول |
| اَلزَّعَنُ | بيقراره كيدل | اَلسَّحْبُ | راخكل په زمكه |
| اَلسُّحْتُ | حرام مال گټل | اَلصَّفْحُ | اعراض كول |
| اَلنَّحْبُ | په ژړا کې آواز پورته كول | اَلنَّحِيْتُ | پيچس كيدل |
| وَالنَّحِيْبُ | ------------ | اَلْبَحْثُ | كنستل |
| اَلدَّغْثُ | مرى خفه كولوسره مړكول | اَلدَّغْشُ | تياره کې داخليدل |
| اَلرَّغْثُ | دمورپۍ ښبل | اَلرَّغْسُ | ډير وركول |
| اَلرَّغْفُ | اغږلې شوي وړه | اَلْجَدْحُ | اغږلې شوي وړه |
| اَلْجَرْحُ | | اَلْجَزْحُ | حصه وركول |
| اَلْجَلْحُ | بره حصه څيرې كول | اَلْجَمْعُ | سركشي كول |
| وَالْجُمُوْعُ | سركشي كول | اَلرَّدْحُ | ثابت قدم كيدل |
| اَلرُّزُوْحُ | دكمزورتياله وجې پرېوتل | اَلرَّزْحُ | تيزه منډل |
| وَالرَّزَاحُ | ------------ | اَلرَّشْحُ | دلوښي څڅيدل |

## مصادر باب پنجم از ثلاثي مجرد : فعل يفعل :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْحَسْبَانُ | گمان كول | وَالْمَحْسَبَةُ | گمان كول |
| اَلنِّعْمَةُ | خوشحاله كيدل | اَلنُّعُوْمَةُ | نرم او نازك كيدل |
| اَلْهَبْصُ | جلدباز كيدل | | |

## مصادر باب ششم از ثلاثي مجرد : فعل يفعل :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْجُدُوْبَةُ | قحط كيدل | اَلْجَنَابَةُ | ناپاك كيدل |
| اَلْخَطَابَةُ | واعظ كيدل | اَلرُّطُوْبَةُ | لمديدل |
| اَلرِّحَابَةُ | خاي فرخه كيدل | وَالْمَرْحَبَةُ | خاي فرخه كيدل |
| اَلشَّقَاحَةُ | قبيح كيدل | اَلصَّبَاحَةُ | دمخ روښانه كيدل |
| اَلصَّرَاحَةُ | خالص كيدل | اَلشَّعَارَةُ | شاعر كيدل |
| اَلطَّلَاحَةُ | خالص كيدل | اَلْفَسَاحَةُ | وسيع كيدل |
| اَلصُّرُوْحَةُ | ------------ | اَلطَّهَارَةُ | پاك كيدل |
| وَالْعَقَارَةُ | شنډيدل | وَالْمَعْسُوْرُ | مشكل كيدل |
| اَلْعَقْرُ | ------------ | اَلْعُسْرُ | ------------ |

## مصادر باب اول از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْاِتْرَابُ | مالدار كيدل | اَلْاِتْعَابُ | ستړي والي |
| اَلْاِتْغَابُ | هلاكيدل | اَلْاِتْرَابُ | ملامت كول |
| اَلْاِجْدَابُ | دباران نه كيدو په وجه وچيدل | اَلْاِجْرَابُ | اوښانو كې خارښ خوريدل |
| اَلْاِحْدَابُ | ملاتيتيدل | اَلْاِحْسَابُ | خوښول |
| اَلْاِحْطَابُ | لرګي تولول | اَلْاِحْقَابُ | روستوسورول |
| اَلْاِخْرَابُ | ويران كيدل | اَلْاِخْصَابُ | شين كيدل |
| اَلْاِخْطَابُ | نږدې راتلل | اَلْاِخْلَابُ | په ختو كې ليت پيت كيدل |
| اَلْاِخْنَابُ | هلاكيدل | اَلْاِذْنَابُ | ګناه كول |
| اَلْاِذْهَابُ | | اَلْاِرْجَابُ | تعظيم كول |
| اَلْاِرْطَابُ | لمدول | اَلْاِرْغَابُ | رغبت وركول |
| اَلْاِرْكَابُ | سورلي وركول | | |

## مصادر باب اول از ثلاثي مزيدفيه

تصريف په اصل کې تصررف ؤو ځکه مصدر کې دفعل دحروفو موجو والې ضروري دې پس دويمه (را) بدله شوه يه يا باندې په دې دواړو (را) کې يو بالاتفاق زائده ده، دابن مالك او ابن عصفور غوره مسلك دادې چې اوله (را) زائده ده ځکه دا ماضي کې ساکنه ده او په ساکن حرف باندې د زائد حکم لګول بهتر دې نسبت سره حرف متحرك ته

دابن حاجب او يونس دا مسلك دې چې دويمه (را) زائده ده ځکه زيادت ته احتياج ددويمې (را) دتلفظ په وخت کې راغلې دې، دامام سيبويه په نزد باندې په دې دواړو (را) کې دهر يو دزائد والې احتمالي شته

### تدريج الأواني شرح الزنجاني بحوالۀ انجاد الصرف :

| اَلتَّتْرِيْبُ | خاورې اچول | اَلتَّطْرِيْبُ | لوبه | اَلتَّسْلِيْبُ | ناتمام بچې غورځول |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلتَّرْتِيْبُ | دمرتبې لحاظ ساتل | اَلتَّجْلِيْبُ | چغې وهل | اَلتَّشْرِيْبُ | اوبه څښل |
| اَلتَّثْقِيْبُ | روښانه کول | اَلتَّجْنِيْبُ | لرې کيدل | اَلتَّهْرِيْبُ | تختيدل |
| اَلتَّجْرِيْبُ | آزما وهل | اَلتَّسْرِيْبُ | ډلې ډلې ليږل | اَلتَّضْرِيْبُ | ډير وهل |
| وَالتَّجْرِبَةُ | ------------ | اَلتَّطْنِيْبُ | خيمه لګول | اَلتَّعْجِيْبُ | تعجب کې اچول |
| اَلتَّقْلِيْبُ | لقب ورکول | اَلتَّنْجِيْبُ | نذر منل | اَلتَّنْصِيْبُ | ساتل |
| اَلتَّنْقِيْبُ | ښه کنستل | اَلتَّكْبِيْبُ | جُدا کول | اَلتَّهْذِيْبُ | جلدي کول |

### مصادر باب سوم از ثلاثي مزيد فيه :

| اَلْمُجَاذِبَةُ | چاسره کشمکش کول | وَالْجِذَابُ | چاسره کشمکش کول | اَلْمُجَانِبَةُ | په ترخ کې تلل |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلْمُحَادِبَةُ | جنګ کول | اَلْمُحَاسِبَةُ | دحساب جانچ پړتال کول | اَلْمُخَاطِبَةُ | يوبل سره خبرې کول |
| اَلْمُلَاعِبَةُ | يوبل سره لوبې کول | اَلْمُرَاقِبَةُ | نګراني کول | اَلْمُشَارِبَةُ | يوبل سره خاې څښل |
| اَلْمُشَاغِبَةُ | يوبل سره جګړه کول | اَلْضِّرَابُ | توره وهل | اَلْمُعَاقِبَةُ | روستو راتلل |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْعِقَابُ | روستو راتلل | اَلْمُغَاصِبَةُ | په غصه باندې برانګيخته کول | اَلْمُغَالِبَةُ | يوبل باندې دغلبې کوشش کول |
| وَالْغِلَابُ | يوبل باندې دغلبې کوشش کول | اَلْمُكَاتَبَةُ | خط او کتابت کول | اَلْمُنَاسِبَةُ | مشابه کيدل |
| اَلْمُنَاقِبَةُ | صفاتو باندې فخر کول | اَلْمُحَادِثَةُ | خبرې کول | وَالْعِلاَجُ | |
| اَلْمُرَالَجَةُ | نفع ورکول | اَلْمُرَاجَحَةُ | تيتولو کې دغالب کيدلو لپاره مقابله کول | اَلْمُسَافَحَةُ | بدکارې کول |
| اَلْمُصَالِحَةُ | صلح کول | وَالصِّلاَحُ | صلح کول | اَلْمُقَارِحَةُ | مخامخ کيدل |
| اَلْمُكَاشِحَةُ | طمع ساتل | اَلْمُنَاصِحَةُ | يوبل ته نصيحت کول | | |

## مصادر باب چهارم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلتَّثَقُّبُ | سوړې کول | اَلتَّسَرُّبُ | اوبونه ډ کيدل | اَلتَّسَلُّبُ | دغم کپړې اخستل |
| اَلتَّشَرُّبُ | جذب کيدل | اَلتَّشَعُّبُ | متفرق کيدل | اَلتَّطَرُّبُ | په خوشحالۍ برانګيخته کول |
| اَلتَّعَتُّبُ | په يوبل باندې ناراضګي اظهارول | اَلتَّعَجُّبُ | تعجب کول | اَلتَّغَضُّبُ | غصه کيدل |
| اَلتَّغَلُّبُ | غلبه کول | اَلتَّقَلُّبُ | اوړيدل | اَلتَّكَذُّبُ | په تکلف سره دروغ ونيل |
| اَلتَّزَلُّجُ | خويد | اَلتَّقَلُّبُ | لقب موندل | اَلتَّهَلُّبُ | اورلمبه کيدل |
| اَلتَّنَسُّبُ | دهم نسب کيدلو دعوى کول | اَلتَّقَمُّتُ | ناخوښه کيدل | اَلتَّحَدُّثُ | خبرې کول |
| اَلتَّحَنُّثُ | ګناه نه نفرت کول | اَلتَّرَبُّثُ | ساعت تيرول | اَلتَّرَغُّثُ | دښځې والۍ اخستل |
| اَلتَّشَبُّثُ | انختل | اَلتَّبَرُّجُ | دنا آشنا خلکو په وړاندې ښائسته کيدل او راوتل | | |

## مصادر باب پنجم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلتَّجَانُبُ | لرې کیدل | اَلتَّحَاصُبُ | یوبل باندې کانړي ویشتل | اَلتَّحَارُبُ | دجنګ اوربلیدل |
| اَلتَّرَاكُبُ | یوبل دپاسه کول | اَلتَّضَارُبُ | یوبل وهل | اَلتَّشَاجُبُ | ګډوډ کول |
| اَلتَّعَاتُبُ | یوبل باندې دخفګان اظهار کول | اَلتَّعَاقُبُ | پرله پسې راتلل | اَلتَّقَارُبُ | یوبل ته نزدې کیدل |
| اَلتَّكَاذُبُ | یوبل ته دروغجن وئیل | اَلتَّنَاسُبُ | یوبل ته مشابه کیدل | اَلتَّخَافُتُ | پټ ساتل |
| اَلتَّهَافُتُ | پرله پسې غورزیدل | اَلتَّحَادُثُ | یوبل سره خبرې کول | اَلتَّخَارُجُ | خپل مینځ کې تقسیم کول |
| اَلتَّعَارُجُ | په تکلف سره ګډ تلل | اَلتَّمَازُجُ | یوبل سره یوځاې کول | اَلتَّسَامُحُ | نرمي کول |
| اَلتَّسَافُحُ | بدکاري کول | اَلتَّفَاصُحُ | په تکلف سره فصیح کیدل | اَلتَّمَادُحُ | دیوبل تعریف کول |
| اَلتَّنَاجُحُ | پرله پسې درست کیدل | اَلتَّنَاصُحُ | یوبل ته نصیحت کول | اَلتَّنَاسُخُ | یوبل لغوه کول |
| اَلتَّبَاعُدُ | دیوبل نه لرې کیدل | اَلتَّجَاهُدُ | کوشش کول | اَلتَّحَاسُدُ | دیوبل دزوال نعمت |
| اَلتَّرَافُدُ | دیوبل امداد کول | اَلتَّسَانُدُ | اعتماد کول | اَلتَّعَاقُدُ | یوبل سره معاهده کول |
| اَلتَّعَاهُدُ | دیوبل لره حلیف جوړول | اَلتَّفَاقُدُ | بعض . بعض لره تلاش کول | اَلتَّمَاجُدُ | یوبل سره فخر کول |
| اَلتَّنَاشُدُ | یوبل مخکې شعر وئیل | اَلتَّبَادُرُ | تیزي کول | اَلتَّبَاشُرُ | یوبل ته خوشخبري ورکول |
| اَلتَّكَاثُرُ | فخر کول | اَلتَّحَادُرُ | کوزیدل | اَلتَّحَاقُرُ | خپل ځان ذلیله کول |
| اَلتَّغَامُزُ | نظر تیزولو لپاره دورو زو غونډول | اَلتَّخَاصُرُ | خپله ملا باندې لاس کېښودل | اَلتَّدَابُرُ | یوبل سره دشمني کول |

# مصادر باب ششم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلْاِجْتِهَادُ | كوشش كول | اَلْاِجْتِبَاءُ | راخكل | اَلْاِخْتِبَارُ | تعداد كي ډير كښل |
| اَلْاِخْتِبَارُ | دفقرنه بعدغني كيدل | اَلْاِرْتِمَادُ | دكمواوبوپه طرف تلل | اَلْاِدِّرَاسُ | لوستل |
| اَلْاِدِّرَاكُ | ملاويدل | اَلْاِدِّخَالُ | داخليدل | اَلْاِدِّغَامُ | يوشئ په بل شي كي داخلول |
| اَلْاِسْتِبَارُ | تجربه كول | اَلْاِسْتِحَارُ | دسحرپه وخت وتل | اَلْاِسْتِتَارُ | پټيدل |
| اَلْاِسْتِعَادُ | لمبه كيدل | اَلْاِسْتِلَامُ | لاس لګول | اَلْاِجْتِرَافُ | تولـه يـا اكثـره حصه وړل |
| اَلْاِخْتِذَالُ | خوشحاله كيدل | اَلْاِجْتِرَامُ | ګناه كول | اَلْاِجْتِدَاثُ | قبر جوړول |
| اَلْاِجْتِرَاحُ | ګټل | اَلْاِدِّلَاجُ | پوره شپه مزل كول | اَلْاِدِّمَاجُ | مضبوط ښخيدل |
| اَلْاِضْطِرَابُ | متحرك كيدل | اَلْاِضْطِبَارُ | ملاويدل | اَلْاِضْطِبَاغُ | مټ ظاهروول |
| اَلْاِضْطِبَانُ | دترخ او داړ په مينځ كي اوچتيدل | اَلْاِطِّلَابُ | تكلف سره لټون | اَلْاِطِّفَاحُ | زګ ويستل |
| اَلْاِطِّبَاخُ | خپـل خـان لپـاره پخول | اَلْاِدِّخَارُ | دضـرورت لپـاره ذخيره كول | اَلْاِدِّكَارُ | يادول |
| اَلْاِزْهَارُ | روښانه كول | اَلْاِزْعَابُ | چيچل | اَلْاِزْجَارُ | منع كول |
| اَلْاِزْدِلَافُ | قريب كيدل | اَلْاِزْدِرَاعُ | كرل | اَلْاِطِّلَاعُ | معلومول |
| اَلْاِطِّعَامُ | مزيدار كيدل | اَلْاِظِّفَارُ | كامياب كيدل | اَلْاِظِّلَامُ | ظلم برداشت كول |
| اَلْاِجْتِذَابُ | راخكل | اَلْاِعْتِذَالُ | خپل خان ملامت كول | اَلْاِحْطِتَابُ | لرګي ټولول |
| اَلْاِخْتِطَابُ | كوژدن كول | اَلْاِشْتِهَارُ | مشهور كيدل | اَلْاِشْتِمَالُ | تيزي كول |
| اَلْاِشْتِغَالُ | مشغول كيدل | اَلْاِصْطِحَاتُ | حفاظت كول | اَلْاِصْطِرَابُ | پئ جمع كول |
| اَلْاِصْطِلَابُ | دهډوكونه مغزويستل | اَلْاِصْطِلَاحُ | رضامند كيدل | اَلْاِعْتِصَامُ | لاس سره نيول |
| اَلْاِلْتِسَابُ | نسب ظاهر كول | اَلْاِبْتِدَاعُ | ايجاد كول | اَلْاِلْتِشَارُ | خوريدل |
| اَلْاِلْتِظَارُ | انتظار كول | اَلْاِعْتِذَارُ | عُذر بيانو | اَلْاِحْتِرَازُ | بچ كيدل |

| آلِاقْتِصَارُ | ميانه روي |
|---|---|

## مصادر باب هفتم از ثلاثي ميزد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آلِانْتِعَابُ | دپوزې نه اوبه بهيدل | آلِانْجِذَابُ | راخكل | آلِانْزِدَابُ | |
| آلِانْزِقَابُ | سوري كې راتلل | آلِانْحِسَابُ | ----- | آلِانْسِرَابُ | سراب كې داخليدل |
| آلِانْسِكَابُ | اوبه بهيدل | آلِانْصِلَاتُ | وړاندې وتل | آلِانْبِعَاثُ | ليږل |
| آلِانْدِلَاثُ | خودسره كيدل | آلِانْفِرَاثُ | | آلِانْبِعَاجُ | |
| آلِانْبِلَاجُ | | آلِانْدِرَاجُ | داخليدل | آلِانْشِرَاحُ | فراخه كيدل |
| آلِانعقاد | غوټه كيدل | آلِانْجِرَادُ | بربنډ كيدل | آلِانْعِمَادُ | دستني لاندې اودريدل |
| آلِانْقِصَادُ | ماتيدل | آلِانْفِرَادُ | يواځې كيدل | آلِانْتِبَارُ | |
| آلِانْشِمَارُ | تيزبلل | آلِانْصِهَارُ | ولي كيدل | آلِانْعِقَارُ | كونډې كټ كيدل |
| آلِانْفِجَارُ | په كثرت سره راتلل | آلِانْفِطَارُ | شليدل | آلِانْكِسَارُ | ماتيدل |
| آلِانْقِشَارُ | پوستكې ويستل | آلِانْكِدَادُ | تيزبلل | | |

## مصادر باب هشتم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آلِاسْتِعْجَابُ | تعجب كول | آلِاسْتِحْقَابُ | ذخيره كول | آلِاسْتِحْلَابُ | پې لوشل |
| آلِاسْتِخْلَابُ | خراش لګول | آلِاسْتِرْهَابُ | يره وركول | آلِاسْتِعْصَابُ | مشكل كيدل |
| آلِاسْتِطْرَابُ | سپين او تينګ كيدل | آلِاسْتِطْرَابُ | خوشحاله كيدل | آلِاسْتِعْتَابُ | رضامند كيدل |
| آلِاسْتِعْذَابُ | خوږ اومزيدار كيدل | آلِاسْتِغْرَابُ | ناآشناموندل | آلِاسْتِنْصَاتُ | خاموش كيدل |
| آلِاسْتِطْرَاجُ | استنباط كول | آلِاسْتِدْرَاجُ | قريب كول | آلِاسْتِعْلَاجُ | دځرمن غتيدل |
| آلِاسْتِضْبَاحُ | د بوه بلول | آلِاسْتِفْتَاحُ | خلاصيدل | آلِاسْتِقْبَاحُ | بدګڼل |
| آلِاسْتِفْلَاحُ | كامياب كيدل | آلِاسْتِمْلَاحُ | مليح كيدل | آلِاسْتِمْتَاحُ | طلب د بخشش كول |
| آلِاسْتِنْبَاحُ | غپه ول | آلِاسْتِطْرَاطُ | د ير د ير ژړل | آلِاسْتِفْرَاخُ | كوتره د بچو ويستلو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | لپاره اخستل |
| الاستهراج | درانی قوی کیدل | الاستجراح | فاسد کیدل | الاستبعاد | لري کیدل |
| الاستعضاء | ګلونه تولول | الاستفراد | یواخې کارکول | الاستفساد | تباهي غوبنتل |
| الاستمجاد | بزرګي طلب کول | الاستنجاد | بهادرکیدل | الاستنشاد | دشعر ونیلو لپاره وینا |
| الاستنفاد | نیست ونابود کول | الاستخصاد | ډله جوړول | الاستحماد | تعریف منتخب کول |
| الاسترشاد | په صحیح لاره تلل | الاستطراد | دوکه ورکولو لپاره شکست ظاهرکول | الاستحجار | دکانړي پشان کیدل |
| الاستحراز | محفوظ ځاې ته راتلل | الاستحسان | ښه جوړیدل | الاستخبار | خبرموندل |
| الاستضعاف | ضعیف ګنړل | الاستعقاب | عیبونه او نقائص لټول | الاستغلاب | غالب کېدل |

## مصادر باب نهم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الاحسباب | تورسپین اوسورکیدل | الاكمتات | داس كميت كيدل | الاخرجاج | توراوسپین رنګ والاکیدل |
| الاملحاح | دګډ تور او سپین کیدل | الازبداد | خالي رنګ والاکیدل | الازمداد | خالي رنګ والاکیدل |
| الابلقاق | توراوسپین داغونوالاکیدل | الازرقاق | دپیشوپه شان سترګووالاکیدل | الاحمرار | سور کیدل |
| الاشهباب | سپین رنګ والاکیدل چه تور والې ورسره وي | الاخضرار | شین کیدل | الاصفرار | زیړکیدل |
| الاغبرار | دوړووالاکیدل | الاحلساس | تو والي ته مائل سورکیدل | الاربساس | ملك كې تلل |
| الاربهاش | داس رنګین کیدل | الارفضاض | اوښکې بهیدل | الارقطاط | توراوسپین داغونو والاکیدل |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آلِاِلْبِقَاطُ | لاندې شونډه سپن کیدل | آلِاِزْفِتَاتُ | میده کیدل | آلِاِزْمِقَاقُ | کمزوری کیدل |
| آلِاِزْمِکَاكُ | ډیرسوړ کیدل | آلِاِخْضِلَالُ | لمدیدل | آلِاِمْذِلَالُ | سُست کیدل |
| آلِاِدْلِمَامُ | دخرتوریدل | آلِاِدْهِمَامُ | داس توریدل | آلِاِزْثِمَامُ | دپوزې په غاړه سپین داغ والا کیدل |
| آلِاِزْلِمَامُ | تیزۍ سره سفر کول | | | | |

## مصادر باب دهم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آلِاِشْهِیْبَابُ | سپین رنګي کیدل چه توروالي ورسره وي | آلِاِسْخِیْتَابُ | دزخم پړسوب کم کیدل | آلِاِکْمِیْتَاتُ | داس سور بخن کیدل |
| آلِاِبْلِیْجَاجُ | ظاهرول | آلِاِلْهِیْجَاجُ | ګډوډ کیدل | آلِاِخْرِیْجَاجُ | توراوسپین رنګ والاکیدل |
| آلِاِزْعِیْدَادُ | یوځای یې کیدل | آلِاِبْهِیْرَادُ | دشپې اوږدیدل | آلِاِحْمِیْرَارُ | تدریج سره سور کیدل |
| آلِاِخْضِیْرَارُ | سبزرنګ کیدل | آلِاِشْمِیْرَارُ | غنم رنګ کیدل | آلِاِصْحِیْرَارُ | سوروالي طرفته مائل خاکي رنګ والاکیدل |
| آلِاِصْفِیْرَارُ | زیړرنګ کیدل | آلِاِغْفِیْرَارُ | ویخته اوږدیدل | آلِاِزْمِیْزَازُ | متحرك کیدل |
| آلِاِمْلِیْسَاسُ | غوړزۍ والا کیدل | آلِاِقْطِیْرَارُ | خشك کیدل | آلِاِزْقِیْطَاطُ | توریاسپین داغ والاکیدل |
| آلِاِزْمِیْقَاقُ | کمزوري کیدل | آلِاِزْنِیْقَاقُ | دپیشوپشان سترګو والاکیدل | آلِاِخْضِیْلَالُ | لمدیدل |
| آلِاِدْهِیْمَامُ | داس توریدل | آلِاِزْنِیْمَامُ | غصه ناک کیدل | آلِاِشْهِیْنَانُ | دوړووالاکیدل |

## مصادر باب یازدهم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | |
|---|---|---|---|
| آلِاِجْلِوَّاذُ | تیزتلل | آلِاِخْرِوَّاطُ | آلِاِعْلِوَّاطُ |

## مصادر باب دوازدهم از ثلاثي مزيد فيه :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلاِخرِيْذَابُ | شاتيتې کيدل | اَلاِخشِيْشَابُ | سخت کيدل | اَلاِعْذِيْذَابُ | خوشگوار کيدل |
| اَلاِعشِيْشَابُ | دزمکې سرسبز کيدل | اَلاِغْصِيْصَابُ | سختيدل | اَلاِغْلِيْلَابُ | کنړيدل |
| اَلاِخضِيْضَارُ | شين کيدل | اَلاِخمِيْمَاضُ | ترش کيدل | اَلاِحرِيْرَافُ | يو طرف تيتې کيدل |
| اَلاِحقِيْقَافُ | کږيدل | اَلاِخرِيْرَاقُ | خيرې کيدل | اَلاِخلِيْلَاقُ | بوسيده کيدل |
| اَلاِغرِيْرَاقُ | سترګوکې اوښکې راتلل | اَلاِحلِيْلَاكُ | سخت توريدل | اَلاِخضِيْضَالُ | لمديدل |
| اَلاِخشِيْشَانُ | غصه ناك کيدل | اَلاِقْدِيْدَانُ | پوره اوږديدل | اَلاِخضِيْضَابُ | شين کيدل |
| اَلاِعرِيْرَافُ | آماده کيدل | | | | |

## مصادر اول رباعي مجرد :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلرَّفْعَلَةُ | تيزه منډه وهل | اَلحَسْبَلَةُ | حسبي الله وئيل | اَلقَحْزَمَةُ | واپس کول |
| اَلقَحْزَلَةُ | اچول | اَلقَحْزَنَةُ | پرځول- غورځول | اَلحَذْقَلَةُ | په کتلو کې سترګې اړول |
| اَلشَمْخَرَةُ | تکبر کول | اَلضَرْغَمَةُ | دزمرې غوندې کار کول | اَلزَعْبَعَةُ | پرېشانه کيدل |
| اَلسَرْطَعَةُ | ديرې دوجې تيز تلل | اَلسَغْلَبَةُ | دبچې ښه طريقې سره پرورش کول | اَلقَرْصَعَةُ | راغونډيدل |
| اَلمَرْهَمَةُ | زخم باندې مرهم لګول | اَلبَعْثَرَةُ | شيندل | اَلدَهْبَلَةُ | غټې غټې نوړۍ (لقمې) خوړل |
| اَلخَطْرَبَةُ | | اَلحَدْرَقَةُ | تيزۍ سره تلل | اَلحَرْجَلَةُ | اوږديدل |
| اَلفَرْكَلَةُ | په مزه غوړخيدل | اَلصَهْرَجَةُ | مړل | اَلجَمْعَلَةُ | کمان باندې منزل خيژول |

